

سرمقاله

بسم الله الرحمن الرحيم

# د امريکا او کرزي وروستۍ ناندرۍ په څه ...؟

د کابل لاسپوڅي رژيم مشر (کرزی) دخپل مجرمانه واک د دورې په وروستيو شيبو کې زيار ګالي څوپه جعلي اوناندريز ډول ځان دافغان ستر ملت د ملي ارزښتونو قهرمان او ساتونکی وښيي.

حال داچې دنوموړي نه ښبونکي جنايتونه، خيانتونه اود اسلام په ضد جسارتونه هيڅکله له چا پټ نه دي او ټول د تاريخ اوخلکو په يادابښت کې شته.

عجيبه داده چې کرزی په ناځوانمردانه کړو وړو او کرغېړنو خوځښتو د شرم ياعار محسوسولو په ځای دافغانانو په ستر ګو کې دخاورو په اچولو هڅه کوي ځان په افغانيت اووطن مين وښيي.

مثلاً: څو ورځې دمخه کابل کې له خبريالانو سره دخبرو پر مهال يې يادونه وکړه چې: ''دامنيتي تړون دلاسليک لپاره دډول ډول اقتصادي، سياسي او تبليغاتي فشارونو سره مخامخ دی، هماغسې چې په ۱۸۹۳ز کې دډيورنډ تړون ترمخه امير عبدالرحمن خان دانګريزانو دفشار سره مخامخ و، که پوره ځير تياونه شي ښايې افغانستان دګندمک او ډيورنډ په څير معاهدې ته اړ شي اودی داکار نه غواړي...''

دلړې پوهې اوادراک خاوند هم پوهېږي چې اوس دجناب! داډول څر ګندونې دمظلومو افغانانو په زخمونو د مالګې دوړولو مرداف عمل دی! کنه له امريکايانوسره په پټو ستر ګودتور کرغېړن سند شرائط بشپړول او بيادلينديه په ۳مه دمشورتې لويې جر ګې نه تصويبول پخپله دده هغه نه ښبونکی تاريخي جنايت اوخيانت دی چې دافغانستان په ټول تاريخ کې بل چاندی کړی ؟ايا له نوموړي پر ته بل چاته دپړې ګوته نيول کيدای شي؟؟ هيڅکله نه! که رښتيا کرزي نه غوښتلې چې افغانستان دې دډيوورنډ او ګندمک په څير له کومې بلې شرموونکې معاهدې سره مخ نشي، نن به افغانستان او دی له دغه ډول فشارونو سره نه ومخامخ !!

دسياسي چارو کارپوهان د کرزي نويو څر ګندونو ته د"هندو ستړي خدای ناراض" په بڼه ګوري ،اوبريښي داسې چې دلويې جر ګې نه دامنيتي تور سند له تصويب وروسته امريکا ترې دخپل "کرم" نظر بل لور ته اړولی!.

ځنکه چې په داوروستيو کې امريکايې پلټونکو خبرداری ورکړی چې دکرزي په شپاړس وزيرانو کې په يوه هم دپيسو دنه ضايع کيدو حساب نه شي کيدای!

يادامريکايې سرمفتش داوينا:چې افغانستان حکومت ته په مستقيم ډول دمرستو ور کول دامريکادپيسو ضايع کيدلو امکان زيات کړی!

هم داراز :دامريکايي کانګريس له لوري دروان کال لپاره دافغانستان انکشافي مرستو بوديجه ترنيمايې هم ډيره کمول.

دکتونکو له نظره داهغه مهم ګامونه دي چې پر سريې کرزی له امريکا دومره خوابدی اوخواشينی شوی چې آن امريکاته په اخطارونو....هم بريک نه نيسي!!

هغه تمه درلوده چې دلوېي جر ګې نه دامنيتي تړون په تصويبولو به ځان امريکا ته ترپخوا نور ډير نيږدې حس کړي!! امريکابه يې د هڅو اوسترياوو قدرداني وکړي، په بنو القابو، شابسيو، غوړو چربو ډاليو او ډول ډول مډالونو به يې ونازوي!! ددي په ځای هغوئ ورته شاه کړه اوله افغانستانه دوتلو ترڅنګ يې په کوم بل ګوډاګي نظر خبښ کړی.

اوښکاره ده چې امريکاهم مجبوريتونه لري هلته په امريکا کې دننه له روان جنګه دخلکو دملاتړ سلنه مخ په کميدوه ده، دامريکاډير خلک له خپلو واکمنو بيابيا پوښتنه کوي چې :افغانستان کې ولې ددوئ سرونه پرته له کوم دليل او ګټې له منځه ځي؟ وايې مونږ تراوسه ددغه جنګ په سروبر پوی نه يو! اونه پکې دخپل بري تمه لرو! داوجه ده چې داوباما حکومت ديته اړبريښي چې هرڅومره ژر وي افغانستان کې روان جنګ پای ته ورسي!دامريکا دخلکو دنظرپوښتنو وروستي ارقام هم ښيي چې دامريکا په سلو کې ۵۲ وګړي افغانستان کې له جنګ سره مخالفت لري، اوروانه جګړه دامريکالپاره ستر زيان بولي

خو کرزي ته بيا دهغوئ په تلو کې دخپل ځان اوسر تاوان ښکاري!!هرڅو چې دجګړي دپای شيبې نيږدې کيږي نوموړی دامريکا يې لورينو کمښت احساسوي،چې له رواني لحاظه دې رويي يې په روحيه منفي تاثير ډير کړی او ديته اړشوی دی چې په امريکا دخپل زړه برا اس دخبري کانفرانسونو پرمهال په تونډو څر ګندونو اوقهرجنو نيوکو وباسي، څو په دې ځانته څه نه څه تسکين ورکړي ،ليکن امريکايان پوهيږي چې کرزی اوس له کاره لويدلې هغه ماشيني پرزې ته ورته دی ،چې هيڅ ارزښت نه لري ، په ولس کې يې اعتبار له لاسه ورکړی، څوک پرې باورنه لري بل که اوس هر څه وايي! وايې دي ! دوئ ورته اړتيانه لري...

که څه هم مونږ ته نه ښکاري! بياهم که ښاغلی ځان اصيل افغان او... بولي ! له افغانستانه سره مينه لري، دافغانستان استقلال ته ژمن وي !او نه غواړي چې افغانستان دډيورنډاو ګندمک پشان له بل کرغيړن تړون سره مخا مخ شي نو اوس هم دتوبې دروازه بنده نه پرانيستې ده... له امريکا سره دامنيتي قراردادپه لغوه اعلانولودې دخپلو کړو جنايتونو کفاره ادا کړي!خو....!




# او د

# پیروۍ څلور اساسات

بشير : ----------------------

دهر مسلمان لپاره داسلام د سپیڅلي دین دپیغمبر (ﷺ) د ځلانده اومبارک سیرت لوستل او دهغه په اړه علم درلودل ضروري دی.

له دې پلوه چې مونږ دحضرت محمد (ﷺ) امتیان یو، لازم ده چې درسول الله مبارک د هر، هر سنت اوعمل پیروي وکړو، ددې لپاره باید نبوي سیرت مطالعه کړو،وربانديې ژور غور اوفکر وکړو اوبیا په هغه دعمل کولو کوښښ کړو.

خو داکار ترهغه پورې ممکن ندی، څوچې زمونږ زړونو ته درسول الله (ﷺ) دبې پناه محبت او دبې پایه احترام جذبه یا روحیه ښکته شوې نه وي.

ترهغه وخته زمونږ ایمان کامل نه دی، څو چې زمونږ په زړونو اومغزو کې درسول الله (ﷺ) دمحبت یوه لویه پانګه خوندې شوي نه وې، ښکاره ده چې هر کله مونږ دغه پانګه ومومو بیا درسول الله (ﷺ) دسنت پیروي، او دهغه دمبارک سیرت څپلو ل، خپل ژوند له هغه سره برابر ول هیڅ ستونزمن کار ندی.

درسول الله (ﷺ) سره دتعلق اومحبت کولو څلور اساسات داسي دي چې دهغو په مضبوطو نیولو په مبارک سیرت دعمل کولو حق پوره کیدای شي اودهغو څلورو اساساتو په کلکه تو ګه له نیولو پرته په نبوي سیرت باندې دعمل کولو حق به نیمګړی اوبشپړ نه وي.

اوهغه څلورواړه اساسات عظیم الشان قرآن پخپله ښودلي دي :

پس کومو خلکو چې په تا( رسول الله ﷺ) ایمان راوړ ، کومو خلکوستا تعظیم وکړ ، کومو ستا مرسته وکړه او کومو دهغه نور اتباع وکړه کوم چې په تا نازل شوی دی هم داخلک کامیاب دي(الاعراف ۱۵۷)په پور ته ایت دغور کولو وروسته درسول الله(ﷺ) سره دتعلق چې کوم څلور اساسات دي هغه ترې ماخوذ کېږي کوم چې په لاندې ډول دي:

په رسول الله (ﷺ) ایمان راوړل..

درسول الله (ﷺ) تعظیم کول...

درسول الله (ﷺ) مرسته کول ...

په رسول الله (ﷺ) چې دهدایت لپاره کوم نور نازل شوی دهغه پیروي کول...

په رسول الله (ﷺ) ایمان:

ترهر څه دمخه ایمان درسول الله (ﷺ) دذات مبارک سره دتعلق جوړولو لومړی اساس دی، په دې ایمان راوړل چې هغه دالله (جل جلاله) رسول اونبی دی، او په دې یقین کول چې رسول الله مبارک دټولې نړۍ لپاره دالله (جل جلاله) لخوا رسول او نبي لیږل شوی دی.

په کلمه طیبه : لا اله الا الله محمد الرسول الله او شهادت کلمه: اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمد عبده ورسوله دواړو کې دالله (جل جلاله) په توحید داقرار او اعلان وروسته ددې خبرې تصدیق دی، چې رسول الله (ﷺ) دالله رسول دی،دایواځې په ژبه اقرار نه بلکې په زړه به هم تصدیق کوي، هر کله چې زړه ته داعقیده دننه شي بیا دنړۍ هیڅ انقلاب یې متزلزل کولی نه شي.

درسول الله (ﷺ) تعظیم او توقیر :



دویم اساس دا چې دهر امتي په زړه کې به د رسول الله (ﷺ) په باره کې بې پناه محبت، احترام تعظیم او توقیر موجود وي. دیوې ادنی بې ادبۍ اوبې توقیرۍ واهمه به یې هم په خیال کې نه تیریږي.

د رسول الله (ﷺ) په مجلس کې به ځینو خلکو په لوړ غږ خبرې اولفاظي کوله اوپه دې به یې دخپلې پوهې هنریت ښودو. په دې سره دالله (جل جلاله) له لورې تنبیه راغله، چاچې داکار کاوه هغوئ منع کړای شول، دیته په پام دمفسرینو اومحدثینو په نزد د رسول الله (ﷺ) داوازنه خپل اواز پورته کول بې ادبې ده، خو ددې ممانعت مخاطبین یوائې هغوئ نه بلکې ټول امت دی. له دې وجې که یوڅوک د رسول الله (ﷺ) په حکمونو اوفرمانو نظر جنګې کوي، یا نعوذبا الله ور ته ددقیانوسیت نسبت کوي، یا نورې پلمې اوحیلې جوړوي هغه ددې حکم تر وعید لاندې دي

دیوه محدث غالباً عبد الله بن مبارک (رحمه الله) په مخ کې یوچاوویل: ځما کدو خوښ ندی !عبد الله بن مبارک سملاسي پورته شو اوتوره یې له تیکي وویسته هغه سړي ته یې ویل: ژر دایمان تجدید وکړه، کنه هم دا اوس در نه سر قلموم!دیو شي خوښول اونه خوښول اګر که طبعي امر دی، خو دلته دمحبت او احترام غوښتنه داده چې څوک باید د رسول الله (ﷺ) په خوښه دناخوښۍ اظهار ونکړي! که وي کړ، بې ادبې ده! اوپکې دتوهین اړخ شته دی، الله (جل جلاله) هرنبي اور سول یوائې دمنلو لپاره نه رالیږي، بلکې هغه واجب الاطاعت هم وي، دهغه دحکمونو اوفیصلو په وړاندې سر ښکته کول دهغه دسنتو پیروي لازم ده، دهغه دهر ګام پیروي په "وتوقروه" کې راځي.

د رسول الله (ﷺ) سره مرسته :

دریم اساس دی د رسول الله (ﷺ) نصرت او مرسته کول، څنګه چې نبوت اورسالت دالله (جل جلاله) له لورې یو منصبي فریضه ده، بې لارې خلک په لار کول، دشرک دتورو تپو تیارونه داسنانانو راویستل، دایمان او توحید درڼا په لور دهغوئ بیول، بشریت ته دصالحه اعمالو، حسنه اخلاقو تعلیم ور کول، انساني خدایان راپرزول، ټول انسانان دیوه خدای په لور دعوتول او انسان ته ددې

خبرې یقین ور کول چې هغه به یوه ورځ له دې نړۍ څخه کوچ کوي، اوبیا به دقبر نه پورته کېږي، دخپل خالق اومالک په مخکې به ددنیا دټول عمر دحساب و کتاب ور کولو لپاره وړاندې کېږي.

ددې ټولو خبرولپاره رسول تبلیغ اوجهاد کوي، دایوه له ستونزو ډکه مرحله ده، چې کله یو انسان دکلو کلو عقیده اورسمونه پریږدي اوپه نیغه لار روانیږي، په دې کار ټول ماحول دهغه دښمن کېږي، کوم خلک چې دالله (جل جلاله) رسول مني، په هغوئ لازمه ده چې د الله د رسول ملاتړ اوملګر تیا وکړي، د رسول الله (ﷺ) ملګرو (صحابه وو) دایمان راوړو وروسته هم دومره لویه فداکارې وکړه په هر محاذ اومیدان د رسول الله (ﷺ) په ملاتړ وجنګیدل، جنګونه اوجهادونه یې وکړل په "ونصروه" کې هم دیته اشاره شویده، صحابه وو ډېرې ستونزې وګاللې ترپایه د رسول الله (ﷺ) ټینګ ملګري اوملاتړي پاتې ول.

د رسول الله (ﷺ) د راوړي نور پیروي:

څلورم اساس دی د راوړي نور پیروي کول، په حجة الوداع کې رسول الله وویل:

زه چې تاسو ته کوڅه پریږدم، که هغه تاسو کلک ونیو هیڅکله به ګمراه نشئ! هغه دی دالله کتاب!

دالله (جل جلاله) کتاب کلک نیول په هغه عمل کول د رسول الله (ﷺ) په سیرت عمل دی، نن سبا چې مسلمانانو ټول دین ته شاګرځولي، هرځای په هر هېواد اوهر چیرې منکرات ډیر شوي، دالله نه بغاوت داسلام نه بیزارې، ددیني تهذیب نه لریوالی په دیني عقایدو اومسلمانانو پورې ملندې وهل کېږي، په دې وخت کې دیوه مسلمان تن لپاره ضروري ده، چې هغه د رسول الله (ﷺ) سیرت پوره مطالعه کړي، څو د رسول الله (ﷺ) دمبارک ژوند پیروي وکړي، د رسول الله له اخلاقو اوسنتونه ځان خبر کړي، دمغرب نه چې دشیطاني تهذیب کومه سیلۍ راالوتې دهغې نه دخپل ځان اوخپل اولاد ژغورلو په موخه باید هر مسلمان خامخا د رسول الله (ﷺ) مبارک سیرت وپیژني او په هغه عمل وکړي څو ددغه شیطاني تهذیب دغوړیدلې جال په لومو کې ونه نښلي...

# عملیات جهادی اخیرش

# من را سراسیمه ساخته است

ذبیح الله مجاهد

عملیات پی هم ماه گذشته در برابر دشمن ، خصوصا بر مراکز تحت حمایه استخباراتی، قرارگاه ها و افسران دشمن خارجی و داخلی لگام ابتکار کار زار را از دشمن کاملا به تصرف مجاهدین در آورده است.

دشمن میکوشید که سال نو میلادی ۲۰۱۴ را، سال اختتام جنگ و سال به دست آوردن اهداف شوم خود از جنگ و اشغال افغانستان جلوه دهد، ولی تقدیر چیزی دیگری بر سر دشمن آورد، عملیات گسترده، پی هم ، پیچیده و نیرومند علیه دشمن در ماه جنوری سال نو میلادی، عقل را از نظامیان دشمن ربود،آنها را سراسیمه ساخت و سیاسیون کاخ سفید را نیز در برابر نظامیان و عساکر اشغالگر خود بی باور ساخته است،به نظر آگاهان امور نظامی، حالت کنونی دشمن در افغانستان کاملابه ورشکستگی می ماند و عقیم نمودن همه پلانهای دشمن در میدان نبرد را نشان میدهد.

به نظر آگاهان هر نیرو نظامی که در زمان اعلان پایان جنگ برحالت کنترول نه داشته باشد، علمیات جانب مقابل را در برابر خود به صفر کاهش نه داده باشد، پلانهای مهمی را که بخاطر آن درگیر نبرد بود عملی نه کرده باشد و حلقه محکمی را دور اهداف خود بنا نه نموده باشد، آن نیرو در واقعت امر، شکست خورده و ادعاهای برد جنگ، اعلانهای بهبود وضعیت و کنترول بر حالت، کاملا بی اساس است و نه میتوان به ادعاهای محض خود را برنده معرفی کرد.

نیروهای اشغالگر امریکایی اکنون در افغانستان در همین حالت قرار دارند.

ـ ادعا می نمایند که حالت به نفع آنها بهبود یافته ، ولی در عمل حملات کوبندهء بر حریم استخباراتی و قرارگاهای مهم نظامی دشمن کماکان ادامه دارد، که خود خط بطلان را بر دعوا دشمن می کشد!!؟

ـ جنرالان امریکایی ادعای منظم نمودن نیروهای مزدور را می کنند، ولی در عمل آنها آنقدر در حالت ضعف وناتوانی قرار دارند که مجاهدین تا حلق آنها میرسند و ضربهء را از نزدیک برپیکر آنها واشغالگران وارد می نمایند!!؟

ـ امریکا ادعا دارد که دیگر نیاز به ادامه جنگ دیده نه میشود(یعنی همه چیز طورعادی به پیش میرود و اهداف به دست آمده) ولی در عمل مینگریم که همه دسیسه ومکر های دشمن پی هم ناکام شده، و کنون راه نجات از گیرماندن در جنگ را می جستجو دارند.

ـ دشمن مدعی است که باید تعدادی کمی از عساکر آنها بخاطر کنترول دراز مدت



وضعیت در افغانستان باقی بمانند، بخاطر همین هدف سعی دارند اداره مزدور کابل را مجبور نماید که خلاف میل اکثریت مطلق ملت گام بردارد و دشمنی زیاتر ملت را به دوش گیرد، تا نیروه نظامی امریکا در افغانستان جایگاه دراز مدتی داشته باشد، ولی متوجه نیستند که آیا زیادتر از پنج لک نیروه خارجی و داخلی اعم از ناتو، ایساف، اردوی اداره کابل، پولیس، استخبارات،شرکتهای امنیتی و قراردادیها که در مدت دوازده سال مصروف کار زار علیه مجاهدین وملت غیور افغان بودندکدام دست آوردی دارند؟ آیا ان وسائل نظامی و تخنیک پیشرفته ترین جهان کنونی که در جنگ افغانستان از آن استفاده شد نتیجه دلخواهی داشت؟ آیا همه ارگانهای استخباراتی زیادتر از ۴۹ کشور جهان غرب وهم پیمانان آنها توانستند که مجاهدین رااز طریق کانالهای مخفی و دسیسوی محو نمایند و آنها رادر شرائطی دشوار از کنون به سرخمی آمریکا وادارند؟ آیا آمریکا به مصرف ملیاردها دالر پول توانست که مجاهدین را از اهداف جهادی و مقدس اسلامی خود به عقب راند؟

پاسخ هم سوالها منفی است، ما به اطمنان کامل گفته میتوانیم که آمریکا دیگر کدام ابر قدرت جهانی باقی نه مانده و نه باید ملتهای مسلمان از این هیولاءیی محض ترس داشته باشند، افغانها به اتکاء وتوکل کامل به پروردگار خود مقاومت را در برابر نیم ملیون نیروه دشمن، مجهز به مدرن ترین اسلحهء زمان دوازده سال ادامه داده اند وتاریخ را به خون خود بار دیگر در قرن بیست ویکم رقم زدند.

راه سهل و نجات اصلی برای نیروهای غربی و اشغالگر همین است که دیگر دست از پولیسی جهان بردارد، زخمهای را که از برکت جهاد مردم غیور افغانستان در دوازده سال در عرصه های نظامی، سیاسی، اقتصادي و اجتماعی برداشته اند دیگر باید در فکر التیام آن باشند، مسلمانها را بگذارند که طبق رهنمودهای دینی وارزشهای اعتقادی خود نظام های دارای ارزش و عزت را برای خود درممالک خود به پا استاده نمایند وجهان را باری دیگر به طرف خیر و امنیت واقعی سوق دهند، افغانها روی عادت دینی و فرهنگی خود نه میخواهند به هیچ ملت وکشور جهان مایه ضرر و زیان باشند ونه میخواهند جهان ومنطقه در حالت ناامن و بی عدالتی به سر برد، مانیازمند ارامش و صلح باعزت هستیم و ما نیازمند به سکون و آرام در زندگی هستیم،



بدبختیهای کنونی، زحمات ورنجی که میکشیم این همه تحمیلی بوده و ما قربانی به جا آوردند میل ناسالم ابرقدردهای مستکبر شده ایم، ورنه ما بعد از شکست اتحاد شوروی نیازی به بازسازی واقعی داشتم، نیاز به زندگی مرفه و پر عزت داشتیم ومستحق آرام و صلح بودیم ، ولی امریکا و شرکای جرمی انها بودند که نه گذاشتند این ملت رنج دیده نفس ارام بکشد و مطابق معتقدات خود نظام واقعی اسلامی داشته باشند که الگوی برای تمام ملل مستضعف شوند و راه نجات اصلی را برای بشریت ترسیم نمایندقاري صلاح الدين:

# په (۲۰۱۳) کې

ترتیب - خبیراحمد(م)

## دمجاهدینو په مطبوعاتي لاسته راوړنو ددښمن اعترافات!

دمشرق ورځپاڼې په راپور د(اسوشیتد ) خبري اژانس په هغه تحلیلي راپورپه اساس چې څه موده وړاندې یې دغربي اوامریکایي چارواکواوسیاستوالو له اعترافاتواووینا څخه برابرکړې ویلي: که څه هم امریکااوملاتړو قوتونویې سخت زیاروکښ چې په افغانستان کې دطالبانوغږاومقاومت څه دزور، څه دډالرو اوڅه هم دپراخو تبلیغاتواوډله ییزو رسنیوپه مټ خاموشه اوله ورخیزه وغورځوي اوپه ۲۰۱۳ کال کې خو تردېره ځایه دغه اتکل هم شوی وو چې همدغې موخې ته به بهرنی قواوي ځانونه رسوي ؛ خو طالبانو دکال په اوږدو کې نه داچې په پوځي ډګر کې ځان کلک اومستحکم وساته اوسخته جګړه یې وکړه ، په تبلیغاتي میدان کې یې هم ګڼې لاسته راوړنې درلودې.

جولیان ناپ ، چې په افغانستان کې څوکاله دامریکااواروپادتبلیغاتي وسایلو دتوزیع اوچمتو کولودچارومشرتیرشوی وایی:مونږ په دې علاوه چې په افغانستان کې دګڼوتلویزونو اوتصویري رسنیو مالي تمویل کوو ، دلیري پرتو برخو لپاره مو هم په لکونو هغه راډیوګانې په وړیاډول ویشلي چې له لمر څخه انرژي اخلي ، ترڅو دطالبانو دتبلیغاتو مخه ډب کړل شي ، خودناپ په وینا په هغه سربیره هم طالبانو په تبلیغاتي میدان کې دافغانانو په منځ کې دځان په ګټه کاراو حلول کړی.

اسوشیتدخبري اژانس زیاتوي: زیاتره غربي سیاستوال چې دافغانستان پیښې څاري په دې باور رسیدلي چې غرب په دغه هیوادکې تبلیغاتي جګړه بایللې ده.

دبحران نړیواله ټولنه ، چې دبروکسل په ښارکې اوسي اویو مطالعاتي مرکزدی د۲۰۱۳ کال په په ورستیوشپوورځوکې یې ویلي چې طالبانو دخپلو تبلیغاتو اوپرمختیااوو دخپرولولپاره یوه پیچلي ، خوپه عین حال کې بریالی دستګاه په کاراچولې چې که له یوې زاوي ورته وکتل شي زیاته خوندي ده اوچلونکې یې زیات میلان نلري چې په اسانی ځان ښکاره کړي ، ولې له بل لوري بیا دومره چټکه اوسریعه ده چې یوه پیښه هم له شاربلو اوتیتولوپه ارام نه پرېږدي اوله هغومهمونقطوڅخه په موثره توګه



استفاده کوي چې له امله يې ملي اومذهبي احساسات راپارول کيږي اوپه عام ولس کې ځای پيداکوي.

## تبليغاتي جنګ دطالبانوموثره وسله ده :

امريکاغږراډيو ،په خپل راپورکې د( رند ) دتحقيقاتي غربي مرکزديوه تن کارپوه ( ارتورو مونوز ) له قوله وايي چې دطالبانو تبليغاتي جنګ په داسې حال کې پرمخ ځي چې ۲۰۱۴ کال هم خپلې وزرې وغوړولي او ددې امکان شته چې خارجي قواوې له افغانستان څخه ووځي ، دهغه په قول د۲۰۱۳ کال په اوږدوکې طالبانو دخپلو ويډويي تبليغاتو له لارې بې شميره هغه سيمې اوځايونو ښکاره کړل چې خارجي قواوو دهوايي بمباريوله لارې متضرر کړې وو ، دغه ډول يې دملکي خلکودتلفاتو راپورونه هم په ډاګه کړل چې دامريکا اوناټو اويا ملي اردو دعسکروله لورې عامو افغانانو ته اوښتي وو ، چې دکارپوه په اند طالبانو په دغو کار سره له يوې خوا په ولس کې خپل ملاتړ زيات کړ اوله بل لورې يې دخارجي قواوو په خلاف دافغانانو په کرکې اونفرت کې څوبرابره زياتوالی راوست.

سرچينه وايي شک نشته چې په ۲۰۱۰ کال کې په کندهارکې د( کيمک ) په نامه يو خبري مرکزصرف په دې موخه جوړ شو چې دطالبانو هرډول ادعاوي رد اوبې اهميته وګرځوي اودخبريالانو چمتوکړي راپورونه سانسورکړي ، خو داسې ښکاري چې نوموړي مرکزهم چنداني بريالی نه وو ، سرچينه مثال راوړي چې دوه اونۍ وړاندې په کندهارکې طالبانو يوه هليکوپتر نسکوره کړه، نوموړي مرکزهلې ځلې پيل کړې چې هليکوپترد طالبانو په ډزو نه بلکې دهوا دخرابۍ له وجې سقوط وښيي ، ولې دکيمک هڅې هغه وخت بې خونده وګرځيدې چې طالبانو دهوا دخرابوالي دليل ردکړ اوويې ويل چې په ۲۴ ساته کې دنوموړي ساحې هوانورماله اوهيڅ ډول ستونزه اوالودګي يې نلرله اوعاموخلکوهم دغه استدلال ومانه .

## دمجاهدينو ميډيا غښتلي ده !

دکندهار داجيري اداري دوالي ويندوی ، جاويدفيصل وايي چې دطالبانو ميډيا زمونږ له رسنيواوتبليغاتي دستګاه څخه غښتلي اومخ په وړاندې ده ، هغه وايي ، طالبان هره پيښه له مونږ څخه مخکې خلکوته رسوي اواذهان دځان په ګټه ځرخوي.

دوالي ! ويندوي اعتراف کوي چې طالبان دانټرنيټ، فيسبوک اوټويټر له لارې په سريع اوعاجل ډول خپل خبرونه ، اعلاميې ، پيغامونه اوغبرګونونه خپروي ، په داسې حال کې چې دولتي سرچيني او هڅې دومره پڅې او کمزورې دي ، چې حتی موظف کسان هم په ډيرمشکل پيداکيږي ترڅوخبريالانوته معلومات ورکړي ، نو په دغه صورت کې خبريالان اړ دي چې دطالبانوخبرونوته پام واړوي او ډيرڅه له هغوترلاسه کړي.

دنيويارک ټايمز خبريال ، تيمور شاه وايي چې طالبان په مطبوعاتي ميدان کې له سختې ځيرکتيا اوهوښياری څخه استفاده کوي ، هغه وايي طالبان دايميلونو ، تليفوني ميسجونو ، برښنايي ډله ييزو رسنيو اومهالنيومجلو په مټ خپل پيغامونه اوپرمختګونه په مختصرو جملو اوټکوکې په داخل اوبهرکې خلکوته رسوي

## دطالبانوپه خبروافغانان باورکوي:

د مفکرة الاسلام ويب پاڼه د واشنګټن پوست په استنادوايي ، طالبانو دامريکا اوغرب په وړاندې

دخپلوکموتبلیغاتي وسایلوپه مټ نه ستوماني کيدونکي جګړه شروع کړي ، هم له خپلو پوځي بریاوو په کلکه ساتنه اودفاع کوي اوهم دبهرنیو قواوو هره وړه ناکامي په لوړه کچه تعبیروي اونړي او افغانانوته په مسلسل ډول داذهنیت ورکوي چې نورپه افغانستان کې بهرنیوقوتونو ماته اوشکست لیدلی.

واشنګټن پوست وایي ، دطالبانو تبلیغاتي مبارزي په امریکایي اوغربي واکمنواوسیاستوالو هم کلکه اغیزکړي اوتردې چې دافغانستان دجګړې په باب یې دهغوی واحدتمرکزاولیدلوری له منځه وړي ،ځکه دغه سیاستوال اوچارواکي دطالبانو هغه ویناوي اوغبرګونونه لولي چې په افغانستان کې جګړه خارجي یرغل بولي ،خپل مخالفت په ځای شمیري اوغرب ته په واضحو ټکو وایي چې ددوی قواوي دافغانستان جګړه نشي ګټلای اوښه داده چې ژرترژره عسکروباسي ، دسرچیني په اند همدغه علتونه دي چې زیاتره غربي اوامریکایي سیاستوال اوپوځي ماهرین دافغانستان جنګ بې نتیجي شمیري.

دکابل رژیم چارواکو هم ومنله چې دمجاهدینوروان فرهنګي اومطبوعاتي بهیرمنسجم اوهره پیښه اوتحول په موثراواغیزمن ډول تبلیغوي اوپه دې کارکې لدوی څخه زیات سرعت لري.

دویندویانودارتباطاتوپه اړه په یومهم کنفرانس کې،چې دچارواداري په لوی تالارکې جوړشوی وو دکابل رژیم ځینومهموچارواکو ، دملي امنیت ، دفاع اوکورنیو چارو وزارتونو ویندویانو اوددوی کارپوهانوپه خپلو خبرواوویناووکې دمجاهدینو میډیا اورسنی موثرې وبللې او اعتراف یې وکړ چې که څه هم وسایل او امکانات ددوی په اختیارکې دي ولې بیاهم طالبان په لوړکیفیت اواغیزمنه محتوا ګڼې خپروني اونشرات لري

دوی ومنله چې دمجاهدینوچاپي خپرونې ، بریښنایي رسنی اوویډیویي جهادي فلمونه اوتراني په داخل اوخارج کې بې شمیره لوستونکي اومینه وال لري اوپه خاص ډول یې دځوانانوذهنونه دځان په ګټه اړولي ، همدارنګه ډیره وړه پیښه هم په لږ وخت دخپلورسنیو په مټ دخلکوغوږونوته رسوي ، اعلامیي، غبرګونونه اودمشرتابه پیغامونه په ټاکلي اوموثرډول خپروي اوهغه ټکي پکې راوړي چې ولسي اودیني رنګ پرې غالب وي ترڅو یې په عام ولس کې ښه هرکلی وشي.

په رښتیاهم چې داسلامي امارت مطبوعاتي اوفرهنګي سنګر دمجاهدینوله پوځي اوجهادي پرمختیاوواو پیښوسره اوږه پراوږه پرمخ روان دی اوددغه سنګر اتلان داداځان لپاره لوی افتخار اوویاړبولي چې الله تعالی دغه موثراوسترخدمت له دوی نه اخلي؛ خودهغه ترڅنګ ډیرې خوښی ټکی دادی چې داخلي اوخارجي دښمن اوس په دې خبره کې په یوه خوله دي چې داسلامي امارت مطبوعاتي معرکه خوراچټکه اوانګازويي ددوی نړیوال اوسیمه ییزتبلیغاتي ماشین چې بې خرته لګښت هم پرې کوي چلینج اوبې اثره ګرځولی.

دخارجي اوداخلي غلیمانوپورته اعترافاتوته په کتوله شک پرته دابرداشت اخیستل کیږي چې ۲۰۱۳ کال که په پوځي میدان کې دښمن له پښو وغورځاوه په فرهنګي میدان کې هم لله الحمد مجاهدینو ستري لاسته راوړني درلودي ، الله تعالی دې دټولومجاهدینو هرډول ستړیاوي اوستوماني دخپلې رضاوړ وګرځوي اویرغلګردې نور هم سرټیټي اوله رسوایيوسره لاس اوګریوان ولري.

# طالبان اوسنی رژیم پرزولی شي....؟

فرهاد

خبرې منابع وايي :دروان کال (۲۰۱۴)ز تر پايه له افغانستانه ميشت امريکايي او برتانوي پوځونه دوتلو لپاره چمتوالی نيسي!! په دې سره له ډيرو خلکو سره دا پوښتنه را پيدا شوي، چې ايا اوسنی رژيم به نسکور شي... طالبان به بری ترلاسه کړای شي ؟

ايا دبهرنيو پر متهو ولاړ دولت به وکړای شي چې هغو ټولو ننګونو ته ځواب ووايي، چې دبهرنيو پوځيانو له وتلو وروسته حتمي اويقيني دي ؟او طالبان به هغسي بری ترلاسه کړای شي، څنګه چې هغوئ د۱۹۹۶زڅخه تر ۲۰۰۱زپورې واکمن وو؟

غربي تحليلګران چې زياتره دامريکا اوغربي هېوادونو اهداف تبليغوي، دهغوئ له منځه لو ی شمير دامريکا او نورو خارجي قواوو له وتلو وروسته دطالبانو دبري امکانات زيات بولي!! هغوئ داهم مني چې طالبان دپخوا په نسبت ښه روزل شوي ، چې ځرګنده بېلګه يې دامريکا اوبرتانيې مجهزو ځواکونوته شکست ورکول دي،دا داسي نمونه ده چې دطالبانو په ښې پخې جنګې تجربې اوو ړتيا باندې له پوهيدو سره مرسته کوي اوجوتوي چې طالبان پخپلو عزايمو او بريـاوو بـه ترډېره حده باور ولري.

او په مقابل کې دکرزي داردو او پوليسو روزنه سربيره په دې چې بيدريغه لګښتونه وربانديې شوي اوورته ګڼې اسانتياوي اسباب هم برابر دي، آن داچې دعياشيو مستيو اوفحشاوو لړ کې يې هم ورته فرصتونه برابر کړي دي، ددې باوجود دهغوئ جنګي روحيه هغسي تانده نه بريښي ، څنګه چې دطالب جنګياليوده دکرزي داردو اوپوليسو په ليکو کې زياتره جنګيالي پر نشه يې توکو هم معتاد ګرځيدلي ، دهغوئ ترشا چې دامريکا اوناټو ملاتړ نه وي ډېر مقاومت نشي کولی اکثريت کوښښ کوي دجنګ له ګرمو شيبو ځانونه په يوه اوبله بهانه وباسي

هر چې طالبان دي هغوئ ته دجنګ له ډګره تيښته داسلامي لارښوونو له مخې جرم اوګناه بريښي، هغوئ مونږ وينو چې تر بدنونو پورې باروداوبمونه تړي... له بارودو ډک موټر ته داسي ورپورته کېږي لکه دخپل واده په ډولۍ پسي چې درومي ... درژيم په قواوو کې بيا دومره زړورتيا ليدل څه چې که هغوئ ترشا دامريکا اوناټو له سرتيرو ونه ډار شي ځانونه دجنګ له ځايه لري باسي، هغوئ به څنګه او په کومه روحيه دطالب جنګياليو دبريدونو په وړاندې مقاومت ته دوام ورکړای شي ؟

ديته په پام له اوس نه غربيان له اوس نه لالهاند او انديښمن دي، هغوئ له دې نه تشويش لري، چې هسي نه طالبان واک ته ورسي... که دا کار وشي غرب حکومتونه به ټکان وخوري، ولې هغوئ له افغانستانه چې وځي زيارګالي چې دخپلو هېوادو وګړو ته له ځانو سره دخپل بري پيغام يوسي،بل غواړي په نړيواله توګه په افغانستان ديرغل په اړه ددوئ ددريځ پزيرايې وشي او وستايل شي...

چې دوئ دومره بشرپال دي ، ګورئ! افغانان ددوئ په په وتلو خفه دي!ددې لپاره پرلپسي دميډيا له لارې د سروې ګانوراپورونه خپروي چې ګوندې لوی شمير افغانان دبهرنيانو په وتلو ځانونه ډاډمن نه بولي! ددې لپاره مختلفې حربې کاروي څو بيرون ته ځرګنده کړي چې



افغان وګړي ددوئ په تلو ناخوښ دي حقيقت دادی چې دغسي نظر
پوښتنو او اوسروې ګانو زيات ارقام ددې ښکارندويه دي چې دافغانانو
غوڅ اکثريت دبهرنيانو په وتلو خوشال او راضي دي، دهمدوئ لخوا په
شويو نظر پوښتنو کې لوی شمير افغانانو په ډاګه دبهرنيانو له وتلو ملاتړ
کړی دهغوئ دنور تم کيدو سره يې کلک مخالفت ښودلی، اوپه کلکه يې
دا انديښنې ردکړي چې دبهرنيو دوتلو وروسته دوئ ډاډ من ندي افغانان
پوهيږي چې خارجيان له جګړې پرته ددوئ دترقۍ فکر نه لري، په
خاصه توګه ددوئ دستونزو دکمولو لپاره هيڅکلکه بنسټيز پلانونه نه
لري او باورلري چې هر کله بهر نيان ووځي ددوئ دسوداګرۍ اکارونه
به وغوړيږي، دغه وجه ده چې ډيرولږو افغانانو ويلي چې دبهرنيانو وتل
به په دوئ منفي تاثير ولري نورو په زغرده څر ګنده کړي چې دبهر نيانو
وتل په دوئ هيڅ منفي اغيز نلري، هغوئ دا هم ويلي چې دوئ غواړي
چې بهرنيان له افغانستانه لاړشي، ځکه دهغوئ په شتون کې دوئ هيڅ
ډول ډاډ نه حسوي، هرسړی په دې بيم اوډار کې وي چې هسي نه بهرنيا
ن يې په کور داړه وانه چوي

دځينو په اند: دا خبره کول چې بهرنيان ددوئ راتلونکی
تضمينولی شي درواغ دي، ددوئ راتلونکی يواځي خدای پاک تضمينولی
شي نه بهرنيان!! اودبهرنيانو وتل به ددوئ په ژوند ان شاء الله ښه تاثير
ولري، سربيره پردې چې ډيری افغانان بې وزلۍ ځپلي اوکړولي دي خو
غيرتمن او خودار دي، پخپل هېواد اوخاوره کې دبهرنيانو له موجوديته
کرکه اونفرت ورزي، دبهرنيانو وتل دځانو لپاره ښه زيری بولي

چې په ټوله کې دا درسنيو دې پروپاګند ته ښه ځواب دی چې دا
انديښنې بې ځايه دي چې دبهرنيانو له وتلو وروسته افغانان له طالبانو
ډارلري البته دامريکا دپاتې شونو ډار په ځای دی هغوئ ته تنها طالبان نه
بلکې ملت غاښونه چيچي نورملت پوهيږي چې دوئ له طالبانو سره
دښمني نه لري، طالبانو وړاندې هم اسلامي نظام پلې کړی چې بيا واک ته
ورسي بيا به هم اسلامي نظام راولي اودا دافغان ملت غوښتنه ده، ددې لپاره
يې جهادونه کړي ټولې تودې اوسړې يې دهمدې نظام لپاره ګاللې.

او ښکاره ده طالبانو اومجاهدينو چې څنګه په تيرو ديارلس کلو کې
دامريکا اوناټو مجهز ځواکونه کلابند کړل او په وړاندې ټينګ مقاومت
وکړ، درژيم په اردو اوپوليسو کې هيڅکله ورتيانشته چې دطالبانو
دبريدونو اوپه ځانګړې توګه دتهجمي فدايي عملياتو په وړاندې
مقاومت وکړي

بله داچې هرڅوک پوهيږي چې په طالبانو کې د۱۹۹٦ز کال په
نسبت زيات جوش او جذبه ليدل کيږي،هم د۱۹۹٦ز کال په نسبت زيات
منظم اومنسجم شوي، په ليکو کې يې ددسپلين روحيه ډېره راغلې
اوپخپل داخلي نظم وضبط کې بې ساري هوښيار بريښي، دافغان ولس
دننه يې هم پراخه خواخوږي جلب کړي.

اوپه دې ټولو کې حيرانوونکې دا چې طالبان هغه چارې چې نور يې
د ډېر لوی پرسونل باوجود نشي پرمخ بيولی ،طالبان هغه په ډېر کم
پرسونل سرته رسوي مثلاً :په وروستيو کې دبې بې سي خبريال ....
افغانستان ته راغلی و اودلته يې دتليفون له لارې دطالبانو دوياند ذبيح
الله مجاهد سره مرکه کړي وايي :امريکايان ګومان کوي چې "مجاهد" يو
نه بلکې په دې نوم ګڼ کسان دي!!! ليکن ماچې له کوم يوه تن سره مر
که وکړه هغه ته دا هم په ياد وه، چې څلور کاله وړاندې هم ما ورسره مر
که کړې وه!! هغه ته دا هم په زړه وه چې څلور کاله وړاندې دمر کې په
دروان کې دامريکا يوه ډارونکې الوتکه دهغه دسر له بره تيره شوه!!

دا ديو داسي چا شهادت دی چې هغه دطالبانو مداح نه بلکې
دامريکا اوناټو دجګړه مارو سره خواخوږې لري!! هغه وايي کله چې ما
داځل له مجاهد نه دا وپوښتل :ايا باورلري چې بيا به دوئ بری ترلاسه
کړي دهغه ځواب داو: که تاسي دافغانستان دعامو خلکوسره وګورئ،
دافغانانو داصلي استازو په خاصه توګه له ښارونو دباندې ولس پوښتئ
هغوئ درته هم دا ووايي: چې واقعاً زمونږ پرمهال يو اسلامي نظام واکمن
و، کوم چې دټولو دحقوقو مدافع اوساتونکی و.

دا يو کوچنی مثال دی چې طالبان تر برهر چا زيات منظم او پخپلو
چارو برلاسي دي، نو هر کله چې افغانستان له بهرنې اشغاله ووځي،
حتمي ده واک به دهغه چا حق وي چا چې ددې وطن لويشت لويشت
خاوره پخپلو وينو سمسور کړه چا چې دعصر مغرور اوکبرجن ځواکونه په
شا وتمبول نه دهغه چا چې افغانستان امريکا اوناټو يې را وسته او افغانانو
ته يې دتاريخ بې ساري اونه جبيره کيدونکي ناخوالې واړولي ....




# تېر کال

# فارياب ولايت د بنسټيزو تحولاتو شاهد وو

مرکه کوونکی: حبيب مجاهد

د روان هجري قمري کال د ربيع الاول دمياشتې اولسم سهار وو، چې دوړ انديني وعدې په بنسټ د فارياب ولايت دجهادي مسؤل سره دمر کې په نيت وخوځيدم، دفارياب جهاد مسؤل قاري صلاح الدين نوميږي، چې دهمدې ولايت دالمار ولسوالۍ اوسيدونکی دی، له نوموړي سره مې په تير جولای کې يوځل ملاقات شوی وو، او اوس مې يوځل بياغوښتل دفارياب دوروستيو تحولاتو په اړه ورسره مر که وکړم، دقاري صاحب ځای ته په رسيدو مې وليدل چې ګڼ نور مجاهدين يې هم ميلمانه دي، له دود سره سم يې ميلمه پالنه وکړه او دچايو او ناشتې ست يې راته وکړ، د چايو په سر يوه شيبه له مجاهدينو سره چې دشمال او شمال غربي ولاياتو وو، په مختلفو مسائلو وغږيدو، او وروسته مو مجلس راټول او دقاري صاحب صلاح الدين سره مې مصاحبه پيل کړه، دقاري صاحب سره يې دخپل ولايت څو تنه نور مجاهدين او مسؤلين هم وو، چې د ځينو معلوماتو په يادابنت کې يې ورسره همکاري کوله.

**له قاري صاحب څخه مې په پيل کې وپوښتل:**

که لومړی دا راته ووياست چې د تير کال په اوږدو کې په فارياب کې ستاسو لويه جهادي برياڅه وه؟

**قاري صلاح الدين:**

ستاسو د پوښتنې په ځواب کې بايد ووايم چې د تير کال په اوږدو کې مجاهدينو په فارياب کې خورا سترې برياوې او لاسته راوړنې درلودې، له هغې جملې د پام وړ بريا د ګڼو سيمو فتحه او ددښمن د ځايي تشکيلاتو، پوستو او مليشو له منځه وړل دي، په تيرو څو مياشتو کې دخالد بن وليد عملياتو له پيل وروسته دفارياب په قيصار، المار، خواجه موسی، دولت اباد او چهلګزي ولسواليو کې ددښمن داربکيانو پروسه په بشپړ ډول له منځه وړل شوې ده، په دې ولسواليو کې مجاهدينو په ډله ايزه توګه ددښمن په پوستو او تر واک لاندې سيمو باندې ستر ستر تهاجمي عمليات تر سره کړي دي، چې په نتيجه کې يې اربکيان، پوليس او نور محلي اجير چارواکي يا له سيمو تښتيدلي، ياتسليم شوي او يا هم وژل شوي دي، اوس ديادو شويو ولسواليو تر ۹۰ فيصده ډيره خاوره زموږ تر واک لاندې راغلې ده، په داسې حال کې چې پخوا دغه سيمې ددښمن دمحلي مليشو او اربکيانو په تصرف کې وې.

که ووايو چې د ۲۰۱۳م کال په اوږدو کې په فارياب کې جهادي اوښتون راغلی دا به مبالغه نه وي، ځکه خورا ستر ستر فتوحات شوی ګڼې سيمې ازادې شوي دي، تردې چې موږ همدا اوس دفارياب د ۱۰ ولسواليو تر ۹۰ فيصده ډيره ساحه تر واک لاندې لرو، دغه راز دمجاهدينو شمير او تشکيلات په هره سيمه کې خورا زيات شوي دي، تردې چې په ۲۰۱۳م کال چې کله موږ په قيصار او چلګزي کې په يوه وخت تهاجمي عمليات پيل کړل، په همدې يوځل عملياتو کې ۱۱۰۰ مجاهدينو په يوه ځل برخه درلوده، چې له دې څخه تاسو دجهادي جبهو دقوت اندازه معلومولای شئ، بله داچې داولس همکاري بيخي زياته شوې ده،

کومې سیمې چې زموږ تر نفوذ لاندې دې اولس یې په بشپړ ډول له موږ سره ولاړ دی ، او موږ دغه فتوحات د اولس په مستقیم ملاتړ ترلاسه کړي دي .

**حبیب مجاهد :**

تاسو وویل چې دفاریاب دلسو ولسوالیو ۹۰ فیصده ساحه فتحه شوې ده ، دغه کومې ولسوالۍ دي ؟

**قاري صلاح الدین :**

المار ، قیصار ، چلګزي ، خواجه موسی ، شیرین تګاب ، دولت اباد ، پښتون کوټ ، لولاش ، بندر او ګورزیوان هغه ولسوالۍ دی چې دښمن په کې یوازې سمبولیک شتون لري او تر ۹۰ فیصده ساحه یې دمجاهدینو تر تسلط لاندې دي ، له دې پر ته دمر کزي اندخوی تقریبا نیمايي ساحه فتحه شوې ده او یوازې خان چارباغ ، بلچراغ او قرمقل هغه سیمې ده چې اکثره سیمې یې ددښمن تر تسلط لاندې دي .

**حبیب مجاهد :**

تاسو دسږ کال د جهادي عملیاتو دبریا خبره وکړه که په دې اړه معلومات راکړئ چې سږ کال کوم مهم جهادي عملیات تر سره شول ؟

**قاري صلاح الدین :**

د رسمی احصایې له مخې په تیر کال کې زموږ د جهادي عملیاتو او بریدونو مجموعي ۲۱۳ ته رسیږي ،خو له دې جملې به زه دخالد بن ولید دعملیاتو له اعلان وروسته دځو مهمو او بریالیو عملیاتو یادونه وکړم .

له دې جملې یوځل ستر عملیات دقیصار او چلګزي ولسوالیو په مربوطاتو کې په هغه سیمو پیل شول چې دښمن په کې اربکیان جوړ کړي وو ، په دې عملیاتو کې یو زر او سل تنو مجاهدینو شر کت درلود ، ددې عملیاتو په نتیجه کې ددښمن ۱۹ پوستې فتحه شوې ، دقیصار ولسوالۍ د سنجیتک ، بورغان ، یکه باغ ، قوچقار ، چینار او کاکري سیمې فتحه شوې دغه راز دچلګزي ولسوالۍ د اصحاب کهف سیمه او نور ډیرې قریې دمجاهدینو لاسته ورغلې ، دا خورا ستر او بریالي عملیات وو چې په دښمن مورال یې سخت وځاپه ، له دې عملیاتو وروسته په سیمه کې ددښمن تر ۱۰۰ ډیرو عسکرو او اربکیانو خپلې وسلې وغورځولې وتښتیدل او له مخالفته یې لاس واخیست .

دغه راز دتیر کال د نومبر په لومړۍ نیټه دالمار په ولسوالۍ کې هم خورا ستر عملیات تر سره شول دالمار په عملیاتو کې ۷۰۰ تنه مجاهدینو برخه درلوده ، دلته چې ددښمن لویه قوه راغلې وه ، داخلي او خارجي ځواکونو په کې شر کت درلود او دعملیاتو اراده یې وه ، مجاهدینو په متقابل برید کې دښمن ته سخت شکست ور کړ ، دالمار جګړې دوه ورځې دوام وکړ چې په نتیجه کې یې دشاهین قول اردو یو قومندان جنرال امان ووژل شو ، ددښمن ۸ ټانکونه له منځه لاړل ، او ۲۲ تنه یې ووژل شول ، دالمار په عملیاتو کې ۳ تنه مجاهدین هم شهیدان او ۴ تنه ټپیان شول .

دتیر کال دمهمو عملیاتو څخه دخواجه موسی ولسوالۍ ستر عملیات وو چې ددې ولسوالۍ دعطاخان خواجه په سیمه کې دسرحدي قواوو په پوستو تر سره شول ، په دې عملیاتو کې ۶۰۰ تنه مجاهدین برخوال وو چې په نتیجه کې یې دغه سیمه په بشپړه توګه ددښمن له شتون څخه پاکه شوه ، دسرحدي قواوو قرارګاه فتحه شوه ، دقومندان صمد په نوم یو مشر یې ووژل شول او نور له سیمې وتښتیدل .

د تېر کال دنومبر په ۱۹ نیټه دالمار ولسوالۍ په شاخ سیمه هم ستر عملیات تر سره شول ، شاخ دیوې ولسوالۍ په اندازه پراخه علاقه چې ځانګړی بازار لري ، داسیمه پخوا ددښمن ترولکه لاندې وو خو مجاهدینو چې شمیر یې ۸۰۰تنو ته رسیده په یاده نیټه په همدې سیمه عملیات پیل کړ چې دیوې ورځې سخت



جنګ په نتیجه کې دښمن شکست وخوړ ، دغه سیمه په بشپړ ډول فتحه شوه ددښمن ۸ ټانګونه له منځه لاړل ددښمن ۳۹ تنه عسکر او اربکیان ووژل شول ، او دمجاهدینو په خوا کې یو تن شهید او ۴ نور ټپیان شول .

یاد شوي عملیات دفاریاب په سطحه دخالدبن ولید کلنیو عملیاتو له اعلان وروسته ستر عملیات وو چې لله الحمد ټول بریالي وو او په نتیجه کې یې ډیرې سیمې ازادې شوې .

د خالدبن ولید عملیاتو له پیل وروسته په فاریاب کې ددښمن ګڼ شمیر قومندانان ، سر ګروپان او مضر اشخاص هم وژل شوي دي ، چې دټولو شمیر ۳۷ تنو رسیږي او مشهور یې جنرال امان دشاهین قول اردو، عبدالغفار د کوماندو قومندان ، جنرال سرور دپشتون کوټ داربکیانو مشر ، غلام محمد دالمار ، اولیاء قل او خال ضابط دشیرین تګاب ، محمدظاهر دبلچراغ او قومندان کمال دالمار ولسوالۍ دیادولو وړ دي .

**حبیب مجاهد :**

قاري صاحب تاسو ووېل چې دفاریاب ډیری سیمې اوس دمجاهدینو تر کنترول لاندې دی آیا په دې سیمو کې ستاسو لخوا امن او استقرار قائم شوی دی ، او خلکو ته مو خدمات وړاندې کړي دي ؟

**قاري صلاح الدین :**

موږ تر خپلې وسې په مفتوحه سیمو کې حکومتي سیستم فعال کړی دی ، هغه خدمات چې وطنوال ورته اولیه ضرورت لري ، حکومتي ملکي چارې ، قضاء ، تعلیم او تربیت او داسې نور خدمات ، دتعلیم او تربیې په باره کې که ووایو ، ماته دالمار ولسوالۍ په باره کې دقیق معلومات شته ، چې هلته ۱۵ مدرسې ۷ دارلحفاظونه او ۳ دارالایتامونه جوړ شوي دي ، چې د ولس بچیان په کې زده کړې کوي ، د ټول ولایت په سطحه دمعارف پوره معلومات زموږ دمعارف له مسؤل سره شته که تاسو غواړئ درسره شریک به یې کړو .

له دې وروسته قاري صاحب د ولایتي کمیسیون دچارو لنډ ګزارش راوسپاره ، په دې ګزارش کې معلومیږي چې دفاریاب په مفتوحه سیمو کې دمجاهدینو حکومتي اداره په منظم ډول فعاله ده ، او محلي ادارات یې خپلې چارې له نظم سره سم په مخ وړي ،مجاهدینو په سیمه کې امنیت راوستی ، دتجاوزاتو مخه یې نیولې ، او حق یې حقدار ته رسولی دی .

دا راپور چې دمحلي مجاهدینو په ښه فعالیت دلالت کوي په یوه برخه کې یې لولو ، یک زن بنام ... بنت .... درولسوالي دولت اباد ساعت ۲ بجه شب بتوسط تفنګچه کشته شده بود ، حادثه در قریه سرنیګ صورت ګرفته بود ، مجاهدین ساعت پنج صبح به محل حادثه رفتند، محل قتل را دیدند ، درمحل حادثه ۲ پوچک مرمی تفنګچه پیدا کردند ، وهمچنین درمحل حادثه نقش پای قاتل را دریافتند ، از نقش پای قاتل عکس ګرفتند وتپ تلاش کردند تا جای آمد ورفت قاتل شناسایي شود ، بعد از تلاش مجاهدین واهل قریه انها خانه ای دریافتند که صاحب نقش پای به آن امدورفت داشته است ، ازین خانه شخصی بنام ... ویک تفنګچه به دست آمد ، بعد از ګرفتاری شخص معهود بدون جبر واکراه به جرم خویش اقرار کرد، اما شخص معهود به معاون ولسوال دولت اباد سپرده شد تا بعدا قضیه به محکمه تحویل ګردد .

دفاریاب ولایت په دې راپور کې دخلکو ددعواوو خلاصولو ، دمجاهدینو دصفوفو د تصفیې ، مکافات او مجازات او داسې ډیرې نورو قضیو ته اشاره شوې ده چې په سیمه کې دمجاهدینو په ښه اداري نظم او دسپلین باندې دلالت کوي .

قاري صلاح الدین ووېل چې همدا اوس په فاریاب کې ۹۵ فیصده حقوقي دعوې زموږ په محاکمو کې حل او فصل کیږي ، ځکه زموږ په محاکمو کې فساد نشته ، او یوازې دشریعت په بنیاد احکام جاري کوي .

**قاري صلاح الدين ووېل :**

موږ دمجاهدينو د تثقيف او اصلاح لپاره هم پروګرامونه ترلاس لاندې لرو ، داسلامي امارت په عمومي هداياتو او لوائحو سربېره دمجاهدينو داصلاح لپاره په محلي سطحه برنامې لرو ، نوموړې په دې لړ کې هغه ۱۸ ماده ييزه ورقه رابشکاره کړه چې دسيمې دمجاهدينو د تربيې او اصلاح لپاره يې ابلاغ کړې .

په دې ورقه کې لولو ، مجاهدين بايد اخلاص نيت ، اطاعت ، تقوا او خپل منځي وحدت ولري ، دالله تعالی ذکر له ياده ونه باسي ، نظامي امورو ته متوجه وي ، دجنګ په وخت تدبير او هوښياري ولري ، دملکي تلفاتو په ټينګه مخنيوی وکړي ، دغنيمت مال په امانتدارۍ وساتي ، له خلکو سره ښه اخلاق وکړي ، دخپلو ملګرو خپل منځي تعليم او تربيې ته متوجه وي ، عام مجاهدين دې دخلکو په حقوقي قضاياوو او عرايضو کې مداخله نه کوي ، داسلامي امارت په لائحه عمل کول په هر مجاهد لازم دي او مخالفت کوونکي ته يې سزا ور کول کيږي ، مجاهدين بايد قومي ، لساني او سمتي تعصب ونلري او داسې نورې ګڼې لارښوونې .

**حبيب مجاهد :**

قاري صاحب په پای کې که څه ويل غواړئ ، ترڅو يې لوستونکو ته ورسوو!

**قاري صلاح الدين :**

غواړم خپلو هيوادوالو او دمنطقې خلکو ته خپل پيغام ورسوم ، دوی ته بايد ووايم چې تاسو هغه مجاهدين چې څو کاله يې په اړه غلط تبليغات در ته شوي وو په خپلو ستر ګومو وليدل ، چې هغوی نه پردي وو او نه دنورو ګوډاګيان بلکې همدا ستاسو زامن او وروڼه وو ، نو له دې څخه بايد تاسو داعبرت اخيستی وي چې ددښمن ټول نبليغات دروغ دي ، ددښمن په تبليغاتو بايد هيڅکله باور ونه شي ، موږ وينو چې تاسو دحقيقت په روښانيدلو سره له مجاهدينو سره همکاري زياته کړې ده ، موږ هيله لرو چې له مجاهدينو سره نوره هم همکاري اضافه کړی ، خپل زامن او وروڼه ددښمن له صفوفو څخه راوباسئ ، ځکه تاسو وليدل چې دښمن څومره ظالم او خونخوار دی چې په مسلمانانو هيڅ رحم نه کوي .

تاسو د المار په قره غوايلو سيمه کې وليدل چې دښمن دعملياتو په بهانه په څومره ظلم ښځې او ماشومان په شهادت ورسول ، ۱۳ کورنه يې وسوځول ، په نجار قلعه کې يې ۴۲ کورونه چور کړل اوددښمن وحشي اربکيانو او عسکرو دعام او غريب ولس وروستۍ پاته شتمني هم ترې لوټ کړه .

دغه وحشي عسکر د کفارو اجيران دي چې غواړي د کفارو اهداف سر ته ورسوي ، ددوی په تبليغاتو بايد ونه غولېږئ او اعمالو ته يې بايد وګورئ .

زه تاسو ته اطمينان در کوم چې دمجاهدينو لخوا به له تاسو سره هيڅ غير شرعي چلند ونه شي دهيڅ سر او مال ته به لاس اوږد نه کړای شي ، تاسو وليدل چې موږ په پښتون کوټ ، المار ، قيصار ، چلګزی ، لولاش ، شرين تګاب ، جمعه بازار او دولت اباد کې هغه کسان بنديان کړل او سخته سزا مو ور کړه چې دمجاهدينو له نامه يې غلطه استفاده کوله ، يايي عام خلک ځورولي وي ، که تاسو له هر چا شکايت لرئ بايد موږ ته عريضه وکړئ ، ترڅو مو غږ واوريدل شي .

دسيمې له علماء کرامو مې غوښتنه ده ، چې دخپلو مجاهدينو وروڼو ترڅنګ په اخلاص ودريږي ، مجاهدين ددوی رهنمايي ته ډېره اړ تيا لري ، چې بايد ورسره همکاري وکړي ، ځکه که له جهاد سره دعلم رڼا ملګرې نه وي ، نو مجاهدين بې لارې کيږي او په غلطه لار برابريږي ، نوځکه بايد زموږ علماء کرام له مجاهدينو سره هميشنی تعلق او رابطه ولري ، هغوی ته سمه لار وښيي دهغوی به تربيه اواصلاح کې کوشش وکړي ، تر څو دبې لاريو مخه ونيول شي .

# آه! دهیواد

لیکوال: حامد ک ل

## جید او نومیالی دیني عالم مولوي عبدالله ذاکري هم شهید شو...

ځو ورځې وړاندې دګاونډي هېواد پاکستان بلوچستان ایالت په مرکزي ښار کوټه کې زمونږ دهېواد یو ډېر مشهور علمي او جهادي شخصیت او دافغانستان دعلماوو داتحاد زړ ور مشر مولوي عبد الله (ذاکري) داسلام دسخت زړو دښمنانو لـه لوري پـه ډیـره ناځوانمردۍ شـهید کـړای شـو. انا لله وانا الیه راجعون

بې له شکه دا نړۍ فاني ده ، هرڅو ک ورنه داخرت په لور کوچ کولو لپاره راغلی، دایو داسي حقیقت دی چې تر ې هیڅ یو مسلمان انکار کولی نشي، بلکې دټولو اسماني ادیانو پیروان هم داحقیقت مني، نړۍ کې هرڅوک ژوند تیروي که هغه شتمن دی که غریب، که واکمن دی او که بې واکه، که ځواکمن دی او که کمزوری هر یو دخپل ذوق او صلاحیت سره سم ژوند کوي ،دهغه خوښه وي او که ناخوښه د نړۍ نه بـه داخرت پـه لـور رحلت او کوچ کوي کومو ظالمانو چې مولانا عبدالله ذاکري شهید کړ، هغوئ دې پوه شي چې دنیاکې دڅه وخت لپاره بـه داسلام ددښمنانو سیوري تـه ځانونـه خونـدي کـړي . خـو اخـر یـو ورځ بـه دوئ هـم خامخاددنیا څخه ځي او دخدای (جل جلاله) پـه مخکې بـه ددې نـه بښـونکي کافرانه جنایت تراخه وڅکي ، هیڅکله به خلاص نشي.

دمولانا عبد الله (ذاکري) شهید ټول ژوند داسلام دسرلوړۍ او دهېواد دازادۍ لپاره تیر شو، ټول عمر یې داسلامي بڼ دښیرازۍ اوسمسورتیا ته وقف کړی و، همیش یې دهر باطل پـه وړاندې دحق ویلو فریضـه سرته رسوله ، دادالله(جل جلاله) انتخاب دی چې دیوسړي نه کوم کار په څه ډول اخلي، مولانا عبد الله (ذاکري) په رښتنې توګه ددین مبلغ او داعي و او په دې لاره کې دهر چا درعب اودبدبې نـه بې پـروا و نومـوړی دومـره شجاع او دستر همت څښتن و ، چې نه یې ژبه دکمونزم رژیم وحشت پالو ګوډاګیانو له حق ویلو بنده کړه اونه دجهادي رهبرانو

دخپلمنځـي رقـابتونو اوجنګونـو پـه دوران کـې پـه حـق وینـا سـتړی اوستومانه شو.

دروسانو دتیرې او اشغاله رانیولي دامریکا تر یرغله په هر پړاو اوهـره دوره کې حق وینا له حق نه پلوي دنوموړي ځانګړ تیاوه اوپه ډېر اخلاص او زړورتیـا یـې له هرمنکر اوباطل سره ډغره ووهله

نوموړی څنګه چې په افغانستان دشوروي دتیـري او یرغـل مخـالف او دروسانوپه ضد جهاد فرض ګڼه هم داسي کلـه چې امریکـایې ښکېلاک زمـونږ پـه خـاوره د ظالمانـه یرغـل اراده وکـړه شـهید مولانـا عبـد الله (ذاکري) دهغـو لومړیـو جیـدو علمـاوو لـه ډلې څخـه وو چې دامریکـایې یرغل په وړاندې یې دجهاد فتوه ورکړه ، اووخت په وخت یې هرځای پـه ډاګه دامریکا دتیري په وړاندې جهاد فرض ګڼه او هم یې دروان جهاد او مقاومت نه په کلکه دفاع کوله او دا پـه اصل کې دالله (جل جلاله) دسترو لورینـو څخه یوه لورینه ده چې هر چاته وغواړي د ټول عمر لپاره هغـه دخپـل حقاني دیـن داعی وګرځوي اوترپایـه هغـه تـه پخپـل دریځ اوموقف بانـدې دصبر اواستقامت ویاړ ورپه برخه کړي اوټول ژوند دالله (جل جلاله) ددیـن پـه دفاع او ساتنه کې تیر وي لکه حدیث کې رسول الله (صلی الله علیه وسلم) فرمایلي:

لایزال الله یغرس فی هذا الدین غرساً یستعملهم فی طاعته (ابن ماجه)

الله (جل جلاله) په دې دین کې ونې نیـالوي، هغـوئ پخپـل اطاعت اوبنـدګۍ کې استعمالوي.یقیناً : شهید مولانا عبد الله (ذاکري) هـم د داسي غـوره بنده ګانو له ډلې څخه و چې الله (جل جلاله) دخپل دین دفاع او داعلی کلمة الله ددعوت لپاره غوره کړی وو

الله (جل جلاله) دې نوموړي ته فردوس جنت نصیب کړي اوداروابناد پاتې کورنۍ ، اولادونو، شاګردانو اوملګروته ته دي صبر اواستقامت نصیب کړي امین

دویمه برخه : د اسلامي نړۍ ثقه عالم دوکتور محمد حمید الله (رح)

# د اصول فقه او اجتهاد تاریخ

ژ : شهاب منصور

غالباً په هغه ( کتاب الرایی د امام ابوحنیفه رحمه الله) کې د اصول فقه اوسنی مفهوم بشپړ نه و ، لیکن د رایې څخه په استفاده قانون بدلول، د قانون مفهوم معلومول ، پکې تاویل کول او داسې نور... غالباً په هغه ( کتاب )کې څېړل شوي وو، د اترټولو ړومبنی کتاب دی ، چې په اصول فقه لیکل شوی دی ، کیدای شي پخوا بل چا هم پر دې موضوع په لیکلي اوعملي بڼه کار کړی و، یعنې د امام ابوحنیفه (رحمه الله) استادانو به هم د اصول فقه موضوع په اړه کار کړی وي او په دې اړه یې ځینې سوالونه ځواب کړي وي، خو داچې هغوئ په دې کوم کتاب لیکلی وي ، تراوسه مونږ په اړه یې معلومات ندي موندلي، له دې وجې مونږ وایو چې په د اصول فقه په موضوع ترټولو ړومبنی کتاب ( کتاب الرایی ) د امام ابوحنیفه(رحمه الله) دی

له شک پرته امام ابوحنیفه د قانون په لړ کې لوی خدمتونه کړي ، ترټولو لوی خدمت یې د کتاب الرایی لیکل دي ،له دې څخه علاوه زه یو بل څېز ته هم اشاره کوم او هغه دا چې په نړیوال قانون یې هم یو ځانګړی کتاب لیکلی ، کوم ته چې زه وروسته په تفصیل سره نغوته وکړم، نړیواله قانونپوهنه هم یوه داسې موضوع ده، چې وړاندې د اسلامه یې عملاً شتون نه لاره ، علمي نړۍ ته یې د قانون په توګه وړاندې کول د مسلمانانو کار نامه ده، چې په دې اړه هم تر نورو ړومبنی کتاب د امام حنیفه (رحمه الله) "کتاب السیر" دی، یو بل شی چې زه د هغه یادونه کوم هغه پخپلو شاګردانو کې د علم ذوق پیدا کاوه ، د ذوق مطلب دا نه دی چې استاد هر څه وایي، لکه طوطي ته هم هغه وایه، چې کله ورته اړتیا پیښه شي تکراریې کړه، د امام ابو حنیفه(رحمه الله) د درس طرز داسې نه وو ، هغه پخپلو شاګردانو کې د اجتهادې وړتیا تر څنګ د تفکر او رایې د ازادۍ توانمندې هم پیدا کوله ، د نوموړي په وړاندې هر شاګرد په آزادانه ډول خپله رایه څرګندوله، د بحث او وتمحیص وروسته د معقولو دلایلو په رڼا کې د اړوند مسئلې دلایلو ردو قبولیت کیده ، استاد او شاګرد پخپلو رایو ټینګار او ضد نه کاوه، ویلی کېږي په حنفي فقه کې د امام ابوحنیفه (رحمه الله) په رایه پنځلس فیصده او پنځه اتیا فیصده د صاحبینو په رایه یعنې د امام ابویوسف او د امام محمد بن حسن شیباني په متفقه رایه فتوا ورکول کېږي ، دا هر څه د هغه روزنې نتیجه وه، کومه چې امام صاحب خپلو شاګردانو ته ورکړې وه ، چې ړوند تقلید مه کوئ، د خپلې رایې د څرګندولو حق لرئ اوله حق پرته بل هیڅ مه قبلوئ، ابن خلکان لیکلي چې امام ابویوسف (رحمه الله) یو کتاب لیکلی وه، د هغه نوم "کتاب الاصول" و، فکر کېږي چې هغه هم د اصول فقه په اړه و، یا غالباً د کتاب الرایې شرحه وه ، ممکن امام ابوحنیفه (رحمه الله) کتاب الرایه د لیکلو وروسته خپله تدریس کړی هم وي ، د تدریس دوران کې یې دنیو کو په ځواب کې پخپله د هغه شرحه هم کړې وه او بیا د هغه بحث حاصل امام ابو یوسف (رحمه الله) په کتاب الاصول کې راټول کړی وو ، افسوس! چې دا کتاب تر مونږ رسیدلی ندی ، په نورو شاګر دانو کې یې ډېر ممتاز او نومیالی شاګر د امام محمد (رحمه الله) دی ،له یوه تازه چاپ شوي کتاب نه معلومیږي چې هغه هم په دې موضوع یو کتاب لیکلی وه ، په تازه چاپ کتاب کې د امام محمد (رحمه الله) د کتاب الاصول ځینې حوالې هم راخستل شوي ، دا تازه چاپ شوی کتاب د معتزلي مذهب د امام ابو الحسین البصري کتاب (المعتمد في اصول الفقه ) دی ،

دمعتزله فرقې کتابونه ډېر کم موندل کېږي ، اتفاقاً د المعتمد څلور پنځه نسخې شتون لري ، چې دهغونه دوه يې په استنبول کې شته ، ديمن يوې نسخې فوتو کافي په مصر کې ده ، دويمه مخطوطه ما سره ده ، کومه چې دبيت الفقيه (يمن) ښار قاضي دخپلې لورينې له مخې ما عاجز ته ډالۍ کړې ، يو بله نامکمله نسخه په ميلانو (ایټاليا) کې ده ، ددې ټولو نسخو په مرسته ياد کتاب چاپ ته چمتو شوی دی ، چې دمعتزلې فرقې داصول فقه په موضوع يو مهم کتاب دی ، خو زه دلته ستاسو توجه دهغه کتاب دې جملې ته را ګرځوم ، هغه داده چې معتزلي امام ابوالحسين البصري وايي :امام محمد الشيباني ويلي :اصول فقه څلور شيان دي، قرآن ، حديث ، اجماع ، اوقياس ، دا دهغه کتاب خلاصه ده ، چې ورته ابو الحسين البصري پخپل کتاب کې اشاره کړې،په دې اساس زه ويلی شم چې دامام ابوحنيفه (رحمه الله) يوائې يوه شاګرد د نه بلکې څو شاګردانو دکتاب الرايي دشرحې لړ کې داصول فقه په موضوع کتابونه ليکلي اوددې دريغ غوره کولو يوه وجه دا هم ده چې اوس لږ وړاندې ما تاسو ته وويل :چې دامام ابو حنيفه (رحمه الله) ته کتاب السير هم منسوب دی ، يعنې د نړيوال قانون په اړه يې هم يو کتاب ليکلی و، اګر که مونږ ته دڅو اقتباسونو پرته هغه کتاب بشپړ نه دی رسيدلی ، خو په همدې نوم دهغه درې څلورو شاګردانو کتابونه ليکلي دي، ابراهيم الفزاري چې دامام صاحب يو شاګرد دی دهغه ليکلی "کتاب السير" دمخطوطو په شکلاوس هم شته ، دامام محمد بن حسن شيباني "کتاب السير الصغير" او "کتاب السير الکبير" په نومونو دوه جلا لوی کتابونه ليکلي چې هغه دواړه تر مونږ رسيدلي ، هم داشان دامام ابو حنيفه (رحمه الله) يوبل شاګرد امام زفر هم "کتاب السير" ليکلی ، دامام ابوحنيفه (رحمه الله) په معاصرينو کې امام مالک (رحمه الله) او امام اوزعي (رحمه الله) هم د"کتاب السير" په نوم جلا، جلا کتاب ليکلی ، يوبل معاصر واقدي څوک چې مشهور مؤرخ وه ، هغه هم په نړيوال قانون باندې په همدې نوم کتاب ليکلی دی ، څنګه چې دامام ابو حنيفه (رحمه الله) د"کتاب السير" څخه په تأثر اوپه نړيوال قانون دنومړي د درسونو په اساس دهغه څوتنو شاګردانو دکتاب السير په نوم څو جلا کتابونه ليکلي دي ، هم داسي شايد دکتاب الرايي دتدريس لړ کې هم هغه صورت پېښ شوی وي، او دنومړي شاګردانو په دې موضوع هم ګڼ کتابونه ليکلي وي ، ممکن داصولو نوم هم ورته امام ابو حنيفه (رحمه الله) غوره کړي وي ، دکتاب الرايي دتدريس په لړ کې ددې ذکر کولو وروسته داښودل دي ، چې کتاب الاصول يعنې علم الاصول کوم کتابونه چې په مسلمانانو موندل کېږي ، دهغو درې ړومبني کتابونه يعنې دامام ابو حنيفه (رحمه الله) کتاب الرايي او دامام ابو يوسف (رحمه الله) او دامام محمد (رحمه الله) کتاب الاصول مونږ ته ندي رسيدلي ، کوم کتاب چې مونږ ته رسيدلی هغه دامام محمد شيباني( رحمه الله) دشاګرد امام شافعي (رحمه الله) کتاب دی ، امام شافعي ( رحمه الله) په يوه وخت کې تر څو روايتونو پورې تړلی دی، نومړی دهجرت په ۱۵۰ کال زيږيدلی ، په همدې کال امام ابو حنيفه ( رحمه الله) له دنيا څخه رحلت شوی ، له دې وجې هغه مخامخ دامام ابوحنيفه (رحمه الله) نه استفاده نده کړې البته کلونه کلونه دامام ابوحنيفه دنوميالي اوممتاز شاګرد د امام محمد (رحمه الله) شاګردي او له هغه نه يې ذده کړې کړې دي ، هم يې په مدينه منوره کې کلونه کلونه دامام مالک (رحمه الله) نه ذده کړې کړې دي ، نومړي فلسفه، منطق اوعلم الکلام هم لوستي وو، هغه زمانه کې دمعتزله فرقې راج وو، له هغوئ سره يې مباحثې هم وکړې ، له دې وجې دامام شافعي (رحمه الله) په شخصيت کې څو داسي صفات وو چې په وجه يې نومړي هم داسلام ډېر ستر خدمتونه کړي ، چې دهغو له جملې څخه ځني په لاندې ډول دي :

په مسلمانانو کې څنګه چې اوس ځيني قدامت پال اوځيني جدت پال دي پخوا زمانه کې هم داسي وو، دادوه متضاد فکرونه په هره ټولنه او هر قوم کې شتون لري، په هر صورت هغه مهال ځيني خلک دحديثو په ذده کړه او دهغو په راټولو لو مشغول وو، ځينو خلکو له نورو علومو سره علاقمندې زياته وه،په نتيجه کې هغو فقهاوو چې دقانون علم په لوري يې ميلان ډېر وو ، دمنطقې او فلسفې استدلال په لهجه غوښتل اسلامي قانون ته وده ورکړي ، په دې وجه دحديث په لوري دهغوئ ميلان کم وو ، دامام شافعي (رحمه الله) په زمانه کې ددې دواړو لوريو تر منځ شديد کشمکش راغی،دهغو خلکو چې درسول الله (ﷺ) د حکمونو، افعالو او اقوالو په راټولولو لګياول،او دهغو ترمنځ چې داسلامي قانون تدوين يې دقياس او استنباط په مرسته فاصله او واټن زيات شو، له نيکمرغه چې په دې وخت کې دامام شافعي(رحمه الله) په شان امام پيداشو، دهغه ستر خصوصيت دا و چې له محدثينو اوفقهاوو دواړونه يې



ذده کړې کړي وي ، ، هم يې فلسفې او کلام ته لاس رسۍ درلود، په دې وجه نو موړی ددومره ښه عالم په توګه څرګند شو، چې ددواړو لوريو ترمنځ داتصال او يووالي راوستو مرکزي نقطه شو ، په دې توګه دامام شافعي ترټولو لويه کار نامه داده چې اهل حديث يې او دامت فقهاء سره يو کړل، داچې نوموړی په حديث اوفقه دواړو پوهيدو نو چې هرڅه يې بيانول په هغو به دواړه لوري خوښ وو ، دادامام شافعي (رحمه الله) لامثالا کار نامه ده چې په برکت يې مسلمانانو کې اتفاق راغی، ددې لپاره نوموړي "کتاب الرساله" تاليف کړه،ما مخکې داخبره وکړه چې اوس مهال نړۍ کې په اصول فقه کوم ترټولو پخوانی کتاب موندل کېږي هغه "کتاب الرساله" دی،چې دنړۍ ګڼو ژبوته ژباړل شوې ، په دې کتاب ليکلو ګويا امام شافعي (رحمه الله) ديوه نوي علم بنسټ کيښود، ياداچې ديوه وړاندې جوړ علم بنسټونه يې نور قوي کړل ، نوموړي په رساله کې کوم څه راوړي ، هغه نن دپيړيو پيړيو وروسته هم په هغه ښه پاتې دي ، حتی هم هغه اصطلاحات چې امام شافعي کارولي من اوعن څوارلس سوه کاله وروسته هم کارول کېږي ، درساله معنی ده، ليک، ددې شاليد دادی چې امام شافعي (رحمه الله) د خپل يوه شاګرد په غوښتنه چې استاد !که مونږ ته ددې موضوع يعنې اصول فقه په اړه يوڅه وليکې ، څو دهغو نه په استفاده دافن ښه ياد کړو! امام شافعي دهغه لپاره په يونيم سل مخو کې يو ليک وليکه اوخپل شاګر دته يې هغه ورواستاوه ، په ښه تفصيل يې دا وليکل چې قانون څه ته وايي ؟ قانون څنګه جوړيږي؟ پخوانی قانون څنګه منسوخ کېږي؟ په الفاظو باندې دپوهيدو لپاره څه ته اړتيا ده ؟ په هغه کې دلغت ، دژبې په قواعدو، بلاغت، او دعروض علم په قواعدو هم رڼا اچولې ، اومثالونه يې هم راوړي ، اوددې ترڅنګ يې په زيات دقيق ډول خپلو مخالفينو ته ځوابونه هم ويلي، دامام شافعي په زمانه کې چې دمعتزله فرقې اثر ډېر و، دهغې په اند: په حديث باندې په اسانه باور ګران دی، داويل چې معتزله يومخ حديث ردوي ، افتراء ده ، حقيقت داسي ندی، دابو الحسين البصري دکوم کتاب يادونه چې ما وکړه، هغه دغه فرقې دمؤلف کتاب ب دی، هغه په تفصيل سره ليکلي چې په حديث باور څنګه راتلاس شي؟ دحديث په باره کې دهغه له رايې سره يو سني سړی په مشکله اختلاف کولی شي، داچې څه وجه ده چې له امله يې په هغوئ (معتزله وو) د حديث نه منلو طعن کېږي ؟ غواړم په دې اړه چې امام شافعي(رحمه الله) کوم څه کړي دي ، هغوته اشاره وکړم:

دمعتزله فرقې دعلماوو رايه داوه ، که په يو حديث کې يو حکم راغلی وي ، يا دهغه نه کوم قانون جوړيږي، ددې لپاره ضروري ده چې هغه حديث به له يو نه زياتو کسانو روايت کړی وي ، په "خبر واحد" يعنې ديوه راوي په روايت او حديث عمل نشي کيدای او ناسم دی ، ولې دقانون غوښتنه داده چې دهرې دعوې دثبوت لپاره دوه تتنه شاهدان ضروري دي ، فقهاوو او محدثينو دمعتزله وودا رايه په کلکه رد کړه ، امام شافعي (رحمه الله) ددې ځواب په محققانه لهجه ورکړ ،چې ورسره دمعتزله وونيوکه چې "خبر واحد" دباور وړندې بې اثره پاتې شواو ديوه راوي په روايت ټولو خلکو عمل پيل کړ، امام شافعي (رحمه الله) درسول الله (صلی الله علیه وسلم) له مبارک سيرت نه ګڼ واقعات وړاندې کړل، چې په کې ديوه تن په شهادت ديوه حکم دتعميل حکم شوی، لکه يوه ورځ دسهار لمانځه په وخت کې رسول الله (صلی الله علیه وسلم) يو سړی واستاو، هغه په مختلفو ناحيو کې په لوړ ستوني دا اعلان وکړ :چې قبله نور دبيت المقدس په ځای دکعبې په لور ده دکومو خلکو چې په سهار لمانځه مخونه بيت المقدس ته وو هغوئ ديوسړي په غږ دکعبې لورته وګرځول ، ټولو خلکو دهغه په خبره عمل وکړ، ددې معنی داده چې په نبوي دوره کې هم ديوه سړي په شهادت باندې عمل کيده ، او هيڅکله داسي ندي ويل شوي چې که دوه کسانو درسول الله (صلی الله علیه وسلم) دحکم اطلاع دروړه وې منئ او کنه، نه ، په همدې توګه يې بل مثال وړاندې کړ : يوه ورځ مدينه منوره کې درسول الله (صلی الله علیه وسلم) لخوا يو ګومارل شوی سړی دورمي او په تلو تلو کې دا اعلانوي مسلمانانو! دشرابو دمنعې حکم راغلی ! شراب مه څکئ! يو سړی دی ، حضرت انس (رضي الله عنه) وايي(په صحيح بخاري کې روايت دی دادهغه دکوچنيوالي واقعه ده) کله چې هغه سړي منډې وهلې او همدا اعلان يې په خوله وو او ددوئ تر کوره رسي ، دغه مهال يې والدينو ميلمنو ته شراب وړاندې کړي ، دشرابو دحرمت حکم په اوريدو ، پلار ورته امر کوي: يه ژر پورته شه ، شراب وغورځوه، هغه وايي زه پورته شوم ، تبر مې واخست دشرابو ټول منګي مې مات کړل، کومو خلکو چې شراب څکل هغوئ ډکې پيالې وتوغولي، ټولو خلک ديوه سړي په خبر عمل وکړ ، امام شافعي(رحمه الله)د ګڼو مثالونو په وړاندې کولو ثابته کړه ، چې درسول الله (صلی الله علیه وسلم) په حديث باندې دعمل کولو لپاره ديوه سړي شهادت هم کافي دی، دا دامام شافعي ستره کار نامه وه ، هم دا راز دفقهاوو اومحدثينو يوځای کول دامام شافعي (رحمه الله) داسلامي قانون اوفقهې دتدوين لار کې نه هيريدونکې خدمتونه دي .

نوربيا ....

# د شهید مولوي محمد جان صاحب

عبدالرؤف حکمت

# ژوند او کارنامو ته کتنه

### پیدایښت او د ژوند ابتدائي حالات

مولوي محمد جان ( مخلص ) چې په مولوي احمدجان یې هم شهرت درلود د حاجي عبدالرؤف زوی له نن څخه ۴۳ کاله پخوا په ۱۳۹۲ هـ ق کال چې ۱۳۴۹ هجري شمسي سره سمون خوري ، په خپل اصلي ټاټوبي د غزني ولایت دقره باغ ولسوالۍ دبرلې په کلي کې په یوه دینداره او جهادپاله کورنۍ کې دنیا ته سترګې وغړولې .

نوموړی چې په یوه دین پالونکي خاندان کې زیږیدلی وو ، له ډیر کوچنیوالي دخپلې کورنۍ له خوا دیني زده کړو ته سوق کړای شو ، او دخپل کلي دمسجد له ملاامام څخه یې ابتدائي دیني تعلیمات پیل کړل .

نوموړي چې په خپله سیمه کې یې ابتدایي زده کړې له خپل استاذ مولوي عبدالحی یزداني صاحب څخه ترسره کړې د پنځلس کلنۍ عمر ته په رسیدو دعلم دترلاسه کولو په تکل دپاکستان قبایلي سیمې ته په سفر لاړ ، او دجنوبي وزیرستان د وانه د کړیکوټ په سیمه کې په تعلیم القرآن مدرسه کې یې دیني زده کړې پیل کړې ، په دې مدرسه کې له څه مهال درس ویلو وروسته دجنوبي وزیرستان په اعظم ورسک سیمه کې د شهید قاري آقا محمد غزنوي مدرسې دارالعلوم المجاهد ته لاړ ، ۱۳۶۶ هـ ش کال کې د ډیره اسماعیل خان مظهرالعلوم مدرسې ته لاړ چې له هغه وروسته یې دهنګو ضلعې په توره وړۍ سیمه کې تعلیم القران مدرسه کې څه مهال درس وواېه ، په همدې مدرسه کې له څه مهال درس ویلو وروسته په ۱۳۶۷ هـ ش کال کې په شمالي وزیرستان میرانشا کې دستر جهادي قائد مولوی جلال الدین حقاني صاحب مدرسې جامعه منبع العلوم ته داخل شو ، او له همدې ځایه یې جهادي ژوند هم پیل شو .

### د کمونیزم په خلاف جهاد

د کمونیزم په خلاف دجهاد په مهال مولوي محمدجان چې دغه وخت نوی ځوان وو ، په لوموړي ځل دخوست په ولایت کې په جهادي تعرضونو کې برخه واخیسته ، نوموړی به دحقاني صاحب له مدرسې څخه له نورو مجاهدو طالبانو سره یوځای دخوست ولایت مختلفو جبهاتو ته تلو او په جهادي عملیاتو کې یې برخه اخیسته ، چې له عملیاتو وروسته به د خوست ولایت مربوط د بړي په سیمه کې دحقاني صاحب په مشهور جهادي غونډ کې میشت وو .

دحقاني صاحب په مشرۍ دخوست ولایت د فتحې ۱۷ ورځنۍ معرکه چې دکمونیزم ضد جهاد دمهال مهمه کارنامه بلل کیږي ، مولوي محمدجان صاحب په دې معرکه کې ګډون

درلود او کله چې خوست ښار فتحه شو او حقاني صاحب د پکتیا په مرکز ګردیز باندې تعرضونه پیل کړل ، مولوي محمدجان صاحب د ګردیز ښار ته څیرمه دمهلن په سیمه کې دحقاني صاحب په جهادي قرارګاه کې میشت شو ، نوموړي دحقاني صاحب په جهادي تشکیلاتو کې ترهغه مهاله جهاد ته ادامه ورکړه ، ترڅو په بشپړه توګه دکمونیزم کمپله ټوله شوه او کمونیستي رژیم وپرځیده .

## تنظیمي دوره او له بیت المال څخه دفاع

د مولوي محمدجان صاحب یو نږدې ملګری قاري ضعیف وایي چې دګردیز له نیولو وروسته مولوي محمدجان صاحب سره له خپلو ملګرو دګردیز ښار دبریښنا په ریاست کې میشت شو ، دا مهال دخپلسرو وسله والو او تنظیمي تالانګرو لخوا په عامه تاسیساتو چور ګډ وو ، او ټول دولتي تاسیسات او امکانات یې له مخې چور کول او ولجه کول ، په دې مهال دبې جلبه ټوپکوالو او مسلحو غلو وضعیت داسې وو چې په اسانۍ یې هیڅ مخ نه شوای نیولی ، خو مولوي محمدجان صاحب دخپل جر أ ت او میړانې په برکت وتوانید چې دخپلې ورسپارل شوې او شاوخوا ودانیو امنیت وساتي او له چور چپاول څخه یې بچ کړي .

قاري ضعیف وایي په ګردیز کې زموږ دریاست له څنګ سره د ګردیز دفوائد عامې ریاست وو چې ګڼ شمیر حکومتي موټر او وسایط په کې ولاړ وو ، چې تر دې مهاله دچپاولګرو لاس نه وو ورته رسیدلی ، یوه ورځ څه ګورو چې د بې جلبه وسلوالو له ډلې څخه یو تن دې ودانۍ ته راغلی دی ، او غوښتل یې چې دغه ودانۍ قبضه او وسایط یې لوټ کړي ، کله چې مولوي محمدجان صاحب دغه ټوپکمار لیدلی ، نو ورغلی دی او له ترټلو وروسته یې له دې ځایه پسې اخیستی دی .

لږ شیبه وروسته په ګڼ شمیر کې ټوپکماران چې په غلا او لوټ کې یې شهرت درلود زموږ دریاست مخې ته راغلل ، او غوښتل یې چې له موږ سره خبره سپینه کړي .

قاري ضعیف وایي زه داسې مهال له بریښنا ریاست نه وروتلم ، چې مولوي محمد جان په داسې حال کې چې راکټ ته یې مرمۍ ورتیره کړې ده ، له یوه ډله ټوپکمارو سره په جنجال اخته دی ، او ورته وایي چې که بیرته لاړ نه شي نو له خطر سره به مخامخ شي ، ددغو کسان مشر ویل چې موږ ته نورو خلکو وویل چې په دې ریاست کې طالبان اوسي طالبان ډیر ښه خلک دي او ورشئ په نرمه خبره ورسره خلاصه کړئ ، خو مولوي محمدجان خبره ورغبرګه کړه او ورته ویې ویل چې هرچا درته ویلي چې طالبان ښه خلک دي بد یې کړي دي ، موږ دبیت المال دساتنې په مسئله کې ډیر بې لحاظه خلک یو ، او هیچا ته اجازه نه شو ورکولای چې عامه شتمنی لوټ کړي.

دغه کسان چې له شکل او کردار څخه غله او لوټماران ښکاریدل ویل یې چې دملي محاذ له تنظیم سره تعلق لرو او غواړو د فوایدعامې په ریاست کې پوسته جوړه کړو ، مولوي محمدجان ورته وویل چې په کومه لار راغلي یئ بیرته په هماغه لار لاړ شئ ، او اجازه نشته چې د نورو سیمو غونډې دغه محفوظ پاته ځای هم لوټ کړئ ، کله چې دې شوکمارانو دمولوي محمدجان صاحب جدیت ولید ، نو بیرته لاړل او په دې توګه مولوي صاحب په خپل جر أ ت سره دبیت المال له سرمایې څخه دفاع وکړه .

## د طالبانو په تحریک کې شمولیت او خدمت

د کمونیزم په خلاف دجهاد له انتهاء وروسته مولوي صاحب یوځل بیا خپلو دیني زده کړو ته اوږه ورکړه او هغه مهال چې دطالبانو اسلامي تحریک دکابل څنډو ته رسیده نوموړی دخیبر پښتونخوا دهنګو ضلعې د زرګري په مدرسه جامعه اسلامیه کې دنبوي احادیثو په دوره بوخت وو



، نوموړي په همدې کال دهمدې مدرسې له شيخ الحديث دحسين احمدمدني صاحب شاګرد ( مرحوم شيخ بهره مند صاحب ) څخه داحاديثو اجازه ترلاسه کړه ، او هيواد ته په ستنيدو يې داسلامي تحريک په صفوفو کې خدمت پيل کړ .

مولوي محمدجان له فراغت وروسته څه موده دخوست ولايت په مټاچينه سيمه کې دمشهورې ديني مدرسې دنظامت دنده ترسر کړه او بيا دطالبانو داسلامي تحريک جهادي صفوفو ته لاړ چې په دې جهادي ژوند کې دکابل او دشمال دفتوحاتو غونډې په ستر و فتحو کې يې شرکت وکړ ، دبلخ ولايت له فتحې وروسته يې څه موده دبلخ ولسوالۍ د ولسوال په حيث دنده اجراء کړه ، او وروسته يې دلغمان ولايت دکفيل په حيث دندې ته ادامه ورکړه ، چې په لغمان کې د وظيفې په مهال به ډيره موده د دولت شاه په ولسوالۍ کې په جهادي دنده بوخت وو ، چې په دې سيمه کې يې خورا تاريخي استقامت وکړ او ددښمن ګڼې حملې يې په شا وتمبولې .

دکابل دشمال په جنګي خطوطو کې مولوي محمدجان صاحب ډيره موده دحقاني صاحب دملګرو مجاهدينو سرپرستي هم کوله او ترهغه مهاله يې په جهادي عملياتو کې برخه واخيسته ترڅو دامريکا په مشرۍ غربي کفارو دافغانستان په پاکه خاوره يرغل وکړ .

## دامريکا په خلاف جهاد

دامريکايانو له يرغل وروسته کله چې په پلازمينه کابل دطالبانو واکمني پای ته ورسيد مولوي محمدجان صاحب هم دنورو طالبانو غونډې خپلې اصلي سيمې د غزني قره باغ ته لاړ ، هغه مهال چې امريکايي يرغل تازه دمی وو ، نوموړي څو ځله پکتيا او کندهار ته سفرونه وکړل ، دغه مهال په مسلسله توګه له ستر جهادي قائد حقاني صاحب سره په رابطه کې وو ، او هدايات يې ترې اخيستل دغه راز يې دحقاني صاحب يو مهم پيغام هم په کندهار کې دامارت نورو مشرانو ته ورساوو .

ديرغل په لومړي کال له سقوط نه څه موده وروسته چې د افغانستان دنورو سيمو غونډې دغزني قره باغ ولسوالي هم د ټوپکيانو تر واک لاندې راغلې وه ، مولوي صاحب په لومړي ځل خپل نږدې ملګري راټول کړل ، او دجهادي عملياتو دپروګرام جوړولو په اړه يې ورسره مشورې پيل کړې ، ددې غونډې په سبا دمولوي صاحب يو نږدې ملګری معاون حقمل صاحب دمحلي حکومتي ټوپکيانو لخوا ونيول شو ، خو مولوي صاحب په ډير جر أت سره د ټوپکيانو قرارګاه ته ورغی او خپل ملګری يې ترې راخلاص کړ .

له دې وروسته مولوي صاحب له خپلې سيمې لاړ او دحقاني صاحب په جهادي تشکيلاتو کې يې خدمت پيل کړ ، نوموړي دامهال دپکتيا ، پکتيکا او خوست په سرحدي سيمو کې په ډيرو هغو جهادي عملياتو کې برخه واخيسته ، چې دروان جهاد لومړني تعرضي عمليات بلل کيږي ، ددې عملياتو په مهال دامريکايانو سرحدي قرارګاوې بيا بيا دمجاهدينو تر درنو بريدونو لاندې راغلې ، او هميشه ورته درانه تلفات اوښتل .

مولوي طلحه او مولوي نويد چې له مولوی صاحب سره يې په همدې مرحله کې جهادي ملګرتيا کړې ده وايي ( دامريکايي يرغل په لومړيو کلونو کې موږ چې ۲۵ تنه ملګري وو دمولوي صاحب محمدجان په مشرۍ مو دخوست په سرحدي سيمه پين او بيا په ببره خوله سيمه کې خفيه مرکزونه درلودل ، او له همدې ځايه مو دخوست په ولايت کې په مختلفو سيمو کې په امريکايي قرارګاو باندې عمليات ترسره کول ، له دې جملې هغه دسکربيست عمليات ديادولو وړ دي چې وخت په وخت دخوست دصحراباغ په هوايي مرکز ترسره کيدل ، دغه راز دمولوي صاحب

محمدجان په مشرۍ ملګرو له نورو مجاهدینو سره یوځای د ترخوبي، ژوره، کاریزګي، لواړه او په ځینو نورو امریکایي قرارګاوو هم بریدونه ترسره کول.

مولوي صاحب محمدجان له هغه مهاله بیا د شهادت ترنیټې پورې دیوه وفادار او نه ستړي کیدونکي مجاهد په حیث دجناب حقاني صاحب سره دمیواد په جنوب ختیځ زون کې جهادي خدمت ته ادامه ورکړه، نوموړی دحقاني صاحب له لوړ رتبه او اعتمادی مشرانو ملګرو څخه وو، چې نه یوازې یې نظامي کارونه سمبالول، بلکې ملکي، اداري، دعوت او ارشاد د اولسي مشکلاتو دحل او فصل په چارو کې یې هم فعاله ونډه اخیستله، او حتی ډیر ځله یې په غونډو او لیدنو کتنو کې دحقاني صاحب په نمایندګۍ برخه اخیسته، په ۲۰۱۱ م کال کې نوموړي دحج مبارکه فریضه هم ترسره کړه

شهید مولوي صاحب محمدجان که له یوې خوا دحقاني صاحب به جهادي جبهاتو کې دنده ترسره کوله، بله خوا یې په خپله سیمه دغزني په قره باغ کې هم یوه فعاله جهادي دلګۍ درلوده، چې اوس هم په پوره متانت خپل جهادي خدمت ته ادامه ورکوي.

مولوي محمدجان صاحب دخپل دې جهادي ژوند په مهال درې ځله ددښمن لخوا ونیول شو، چې په لومړي ځل یې شپږ میاشتې، په دوهم ځل دوه میاشتې او په دریم ځل یې اتلس میاشتې بندیخانه تېره کړه.

مولوي محمد جان په دې وروستیو کې دخوست ولایت دجهادي مسؤل په حیث ټاکل شوی وو، نوموړی د ۲۰۱۳ م کال د نومبر په شلمه چې د ۱۴۳۵ هـ ق کال د محرم له ۱۷ مې سره سمون خوري، هغه مهال په شهادت ورسیده، کله چې قبایلي سیمې ته ځیرمه د کورمې دسیند په غاړه د ټنډورو په نامه کلي کې په یوه مدرسه کې په ارام خوب ویده وو، او ددښمن دبې پیلوټه الوتکې دبرید ښکار شو.

د نوموړي جسد دشمالي وزیرستان په میرانشاه دفدايي مجاهدینو په هدیره کې خاورو ته وسپارل شو.

انا لله وانا الیه راجعون

څرنګه چې مولوي صاحب دخپلې سیمې په عامو خلکو کې ژور محبوبیت درلود دغزني په قره باغ کې ولسي خلکو دنوموړي روح ته د دعاء په مناسبت ستر مراسم جوړ کړل او دنوموړي یاد یې ولمانځه.

له شهید مولوي محمدجان څخه د کشرورور اوخوږې مور په شمول یوه میرمن او شپږ اولادونه پاته دي، چې دامنو نومونه یې محمد رفیق، محمد، احمد او محمد عمر دي

## د مولوي محمدجان صاحب دشخصیت په اړه

مخکې له دې چې د شهید مولوي محمدجان صاحب دشخصیت په اړه دنوموړي دنږدې ملګرو تأثرات درسره شریک کړم ددې ژوندلیک مرتب غواړم دمولوي صاحب سره دخپلې لومړنۍ او وروستنۍ لیدنې خاطره درسره شریکه کړم.

څلور پنځه کاله وړاندې هغه مهال چې دامریکایانو په یوه ظالمانه بمبار کې د مولوي جلال الدین حقاني صاحب دکورنۍ ځیني کسان شهیدان شوي وو، له څو تنو مجاهدینو سره دهمدې شهیدانو دفاتحه خوانۍ لپاره لاړم، کله چې دحقاني صاحب د ملګرو ځای ته ورسیدم، نو دفاتحې په مجلس کې خپله دحقاني صاحب دکورنۍ څوک نه وو، خو په مجلس کې یو دقوي متې خاوند ځوان ناست وو، چې دمیلمنو میزباني یې کوله.

ملګرو رامعرفي کړ، چې همدا مولوي محمدجان صاحب دی، چې دحقاني صاحب له نږدې او مشرانو ملګرو څخه دی، دهمدې مجلس ملګري چې دحقاني صاحب دکورنۍ په شهیدانو یې ډیر زړونه غمجن وو، لږ شیبه وروسته دمولوي صاحب محمدجان په احساس پاروونکو خبرو او وعظ باندې داسې مطمئن شول، چې د ټولو له زړونو څخه غمونه وځنډل شول.



مولوي صاحب په خپلو لنډو خبرو کې چې د تول مجلس توجه یې جلب کړه ، د شهادت فلسفه بیان کړه او ویې ویل بایدپه دې شهادتونو سره د الله تعالی شکر اداء کړو چې د الله ددین دساتنې لپاره دومره قربانۍ ته اماده مجاهدین لرو ، ده وویل دامریکاخلاف دجهاد په لومړیو شپو کې موږ دومره مجاهدین نلرل لکه اوس چې شهیدان لرو ، معلومه خبره ده چې الله تعالی دشهیدانو وینه نه ده ضایعه کړې بلکې همیشه یې دهمدې وینو په برکت دجهاد صف قوي کړی او د مجاهدینو شمیر زیات شوی دی ، په هماغه مجلس کې ما ولیدل چې مولوي صاحب یو له ایمانه ډک ، باعزمه او متوکل علی الله مجاهد دی ، چې الله تعالی له امتحاني حالاتو سره دمقابلې لوی استعداد ورکړی وو .

هغه مجاهدین چې له مولوي صاحب سره یې نږدې وخت تیر کړی وایي ، چې مولوي صاحب ته الله تعالی په ښه علم سربیره تقوی ، دیانت ، زړه ورتیا او جر أ ت هم ورکړی وو ، او په هیڅ حالاتو کې یې عزم نه ماتیده .

داسلامي امارت دفرهنګي چارو دکمیسیون مرستیال وایي ( ما یوازې څو ځله مولوي صاحب محمدجان په ځینو غونډو او مجالسو کې لیدلی وو ، خو په نوموړي کې مې دهوښیارۍ ، تدبر ، پاخه عزم او اخلاص خورا ډیر اثار لیدلي وو ، نوموړي په جهادي صف کې خورا ستر کردار اداء کاوو الله تعالی دې دده شهادت قبول کړي .

داسلامي امارت وتلی ترانه خوان او مجاهد شخصیت ملافقیر محمد درویش دمولوي صاحب محمدجان په اړه وایي : مولوي صاحب چې ما ورسره نږدې تعارف درلود خورا مخلص او مشفق جهادي مشر وو ، دخوشطبعۍ خورا ښه مزاج یې درلود ، او که به یې نصیحت یا غوسه کوله هم دخوشطبعۍ رنګ به په کې ظاهر وو ، نوموړي له حقاني صاحب سره اوږده جهادي ملګرتیا درلود او د هغه دخورا نږدې او اعتمادي ملګرو څخه وو .

نوموړي دژوند ترپایه دجهاد لاره په خورا لوړه حوصله وپالله ، دده ملګري وایي چې مولوي صاحب دشهادت خورا ارمانجن وو او تل یې دشهادت دعاګانې کولې ، څه موده وړاندې چې دنوموړي یو مشر جهادي ملګری مولوي محمدسنګین فاتح په امریکایي برید کې په شهادت ورسید ، مولوي صاحب محمد جان به ویل چې دشهادت وار زما وو ، خو مولوي سنګین راڅخه وار مخکې کړ ، چې له دې څخه شهادت ته دنوموړي تلوسه معلومیدله .

مولوي صاحب دمجاهدینو په منځ کې په خیرخواهۍ مشهور وو او له اختلاف او نزاع نه یې خورا کرکه کیدله ، نوموړي لکه څرنګه چې داولسي شخړو او قومي جنجالونو په حل او فصل کې رول درلود دمجاهدینو نیکه تربیه او توجیه ته یې هم همیشه توجه کوله .

دشهید مولوي صاحب ورور حاجي محمد رحیم وایي : مولوي صاحب محمدجان په جهادي شوق سربیره له دیني علومو سره هم ژوره علاقه درلوده ، نوموړي په خپله سیمه دقره باغ په برله کې د نصرت العلوم په نامه ددیني علومو یوه مدرسه جوړه کړه چې همدا اوس په کې ۵۵ تنه لیلیه او سلګونه تنه نهاري طالب العلمان زده کړې کوي .

سره له دې چې مولوي صاحب په شهادت سره جسما زموږ له منځه تللی دی ، خو دنوموړي خوږې خاطرې ، کارنامې او یادونه به تر ډیره دمجاهدینو په زړونو او دتاریخ په پاڼو کې خوندی وي ، نوموړي دصدقه جاریه په توګه دطالبانو او مجاهدینو یو داسې صف ترشا پرې ایښی چې دنوموړي لاره تعقیبوي او په دې توګه دنوموړي په شهادت سره په جهادی صف کې خلا نه محسوسیږي .

رحمه الله تعالی

# داسلام اساسات

## داسلامي او وضعي فقهې تر منځ تفاوت

"دريمه برخه"

مفتي شاهد "حقاني"

**داسلامي فقه مختلفې دورې :**

**داسلامي فقه لومړۍ مرحله يا دنبوت مبارک دور :**

**دعلم فقه دويمه مرحله يا دحضرت شيخينو رضی الله عنهما دوره**

**دعلم فقه دريمه مرحله ياتابعينو دور**

**دعلم فقه څلورمه مرحله يا دکبارو تابعينو دوروستنو او صغارو تابعينودلومړنيو عصر :**

**. دعلم فقه پنځمه مرحله ياداجتهادزمانه**

پروضعي فقه ځينې تنقيدکوونکي وايې ،چې ګوندې اسلامي فقه هم يوازې دعلماوونظريات او آراء دي ،چې ددوئ له نظره خدای ج مکړه اسلامي فقه کوم شرعي اصل او بنسټ نلري، نو ځکه يې ددوئ په آند پر خلاف خروج هم داسلامي شريعت پر خلاف خروج ندی ،ددې په څېرداسې ناپوهه خلک يوه بله پاروونکې خبره هم کوي ، او وايې چې اسلامي فقه ددې عصر حاضرد غوښتنو ځواب نشي ويلای ،اونه ګوندې دنويو پيښو احداث معالجه کولای شي ،ځينې نور خو بيا داسې يو قبيح جرأت هم کوي اودخپل ګمان له تنګې محوطې څخه داسې اټکل کوي، چې ګوندې ددوئ په آند اسلامي فقه اوس دپخوانيو مصريانو او آشوريانو دتشريع غوندې دتاريخ حافظې ته سپارل شوي، اوځينې خلک اسلامي فقه پر عقل او محض قياس باندې مبتني مسايل بولې، اودعامو ناخبره خلکو ذهنيتونو ته داسې القاء کوي ،چې فقه کوم شرعي اصالت نلري، صرف عقلي او استخراجي مسئلې دي او .....او.....او.......

(يَقُولُ بَعْضُ الْمُتَعَصِّبِينَ لِلْفِقْهِ الْوَضْعِيِّ: إنَّ الفِقْهَ الإِسْلامِيَّ مَا هُوَ إِلا آرَاءٌ لِبَعْضِ الْعُلَمَاءِ وَلا يُعْتَبَرُ الْخُرُوجُ عَلَيْهِ خُرُوجًا عَلَى الشَّرِيعَةِ، كَمَا يَقُولُونَ: إنَّ الفِقْهَ الإِسْلامِيَّ لَمْ يُعَالِجْ مَشَاكِلَ الْعَصْرِ وَمَا جَدَّ مِنْ أَحْدَاثٍ .)(الْمكتبة الشاملة /الْموسوعة الفقهية)

خو حقيقت بل ډول دی او دا هسې تېرايستونکې نظريات او دولسي خلکو په تردد کې داچولوهڅه ده ،واقعيت دادی چې اسلامي فقه که څه هم دعلماوو دآراوو او نظرياتو ټولګه يا مجموعه ده، خودا داسې آراء ندې ،چې له ځانه تلقي شوي، بلکې دکتاب الله ﷻ

و سنت الرسول ﷺ په اړوند شرعي نص باندې تر اعتماد او استناد وروسته را مستنبط او مستخرج شوي ،تردې چې کومه رأیه چې په اجماع او قیاس باندې متکي هم وي ،پایله کې به یې رجع ضرور کتاب الله ﷻ یا سنت الرسول ﷺ ته کیږي ،او همدا سې به نه پاتې کیږي.

لکه اجماع امت ،چې ددې لپاره یې اړتیا ده، چې له قرآن او مقبول سنت څخه کوم سند ورته و موندل شي ،چې همدې ته ددوئ په قول سند الاجماع وایې ،کله به داسې هم وي، چې دا سند ظنی الدلالت وي ،خو چې کله دټولو مجتهدینو آراء په یوه رایه متحدې شي ،نو دا سند بیا له ظنیت څخه قطعیت ته مرتفع کوي ،همدا سې چې کوم احکام دقیاس په دلیل رامنځ ته شوي وي، آخر به یې هرور مرو رجه رجع قرآن او سنت ته کیږي ،ځکه دوئ چې دقیاس تعریف کړی ،له هغې څخه ددې وثوق برالا ښکاري، لکه چې دقیاس په تعریف کې دعلم اصول علماء داسې وایې:

لأنّ القیَاسَ - کَمَا عَرّفُوهُ - هُوَ إلحَاقُ مَسْألةٍ لَمْ یَرِدْ فِیهَا نَصٌّ بِمَسْألةٍ أخْرَى وَرَدَ فِیهَا نَصٌّ لِإثْبَاتِ حُکْمٍ شَرْعِيٍّ ،لِجَامِعٍ بَیْنَهَا ،وَهَذَا الجَامِعُ هُوَ العِلّةُ (الموسوعة الفقهیة الکویتیة )یعنې قیاس دیوه مشترکه علت له امله ،دیوه شرعي حکم داثبات لپاره ،دیوې داسې مسئلې الحاق دی چې نص پکې نه وي وارد شوی ،دداسې مسئلې پورې چې نص پکې راغلی وي ،همدا سې چې کوم مسایل په (استصلاح )بناء دي ،چې دې ته عرف کې (مصالح مرسله) وایې، داسې به نه وي چې شارع الغا کړې وي، بلکې شارع به په یوه وجه دوجوهو معتبر ګرځولې وي ،همدا سې دفقه په هر حکم کې ویل کیدای شي ،چې دا به په یوه دوجوهونه په شرعي اصل معتمد وي.

نو ځکه مونږ ددې مذکورو وجوهاتو پر اساس ویللی شو ،چې د اسلامي فقهې قداست او نقاحت یا سپیڅلتیا له آره ددې مصادرو په وجه جوته ده ،او له همدې وجه دا مقدسه ده ،مونږ دپیړیو په پوړیو کې ډیری فقهاء و کتل ،چې دهرې هغې رأیې رفض او نقض یې وکړ، چې شریعت مطهره یې په باب شهادت نه ویلی ،نو هغه احکام چیرته دي ،چې په خواهشاتو او اهواء ولاړ دي او د شریعت داصولو سره اړخ نه لګوي.

دځینو متعصبینو دادعوه، چې اسلامي فقه دعصرغوښتنو ته ځواب ندی ویلی، دا سې چولټ دروغ دي ،چې حتی تاریخ یې هم تکذیب کوي ،دا څوارلس پیړۍ همدې اسلامي فقه نویو مسایلو او اړتیاووته ځوابونه موندلي او لا یې هم مومي ،هره پیړۍ کې مفتیان ،قاضیان او علماء، ددې وړتیا لري ،چې معاصرو مسایلو ته حل پیدا کړي او په شرعي طریقه ورته ځواب ووایې ،ددې په باب سترې او ضخیمې فتاوې ، متون او شروح همدا اوس شتون لري او لیکل یې روان دي ،لکه څنګه چې دعلم فقه له تعریف څخه ښکاري چې

(هُوَ العِلمُ بِالأحْکَامِ الشّرْعِیّةِ الفَرْعِیّةِ العَمَلِیّةِ المُسْتَنْبَطَةِ مِنَ الأدِلّةِ التّفْصِیلِیّةِ )دانسان هر کار چې دده نه صادریږي، د شریعت دحکم لاندې به راځي ،هغه که معاملات دي ،که عبادات ،اخلاقیات ،سیاسیات ،حروب ،منکاحات او یا عقوبات دي ،ټول دیوه مکلف انسان لخوا صادریږي ،او دعلم فقه سره متعلق دي ،نو څنګه کیدای شي ،چې علم فقه ددې عصر غوښتنې نشي ځوابولای او معقول حل ورته نلري ؟

ددې خلکو دادعوه باطله ده، چې اسلامي فقه اوس دتاریخ یوه برخه ده ،او کوم شرعي تلپاتې مقام نلري ،مونږ وایو چې هغه وضعي فقه یا دخلکو لخوا تقنیني



قواعد یا دپارلمانیانو په رایو تصویب شوي قوانین دي ،چې ټولو سیموته یې سرایت ونه کړای شو ،کومه پیړۍ نیمه وچلیږي او بیا په تلپاتې خوب ویده شي ، دځینو خلکو دنفسي غوښتنو او رزوی ګټلو لپاره رامنځته شوي وي ، چې بالاخره په همیشني خوب ویده شي، خو اسلامي فقه به تلپاتې بهیروي ،او همدا اسلامي فقه به دټولو مسلمانو ولسونو دمسایلو دحل معقوله لاره وي ،چې دې سره په ډاګه د اسلامي او وضعي فقهي تر منځ دبیلوالي کرښه راکښلای شو ،هغه داسې چې اسلامي فقه هغه ده ،چې هم ددنیوي سزا او هم داخروي سزا سره اړه لري ،ددنیوي سزا نه دچا انفلات یا لیري کول، به یې دا معنی ونلري، چې هغه دې له اخروي سزا څخه هم معاف شي ،بل مونږ ګوروچې فقهاوو ،دفقه په هره تکلیفي مسئله دا څرګنده کړې ده، چې دا حلال دی یا حرام ،دا فرض دی او دا مندوب.....لکه چې دوضعي احکامو په باب دوئ داسې وایي: چې دا صحیح دی او یا غیر صحیح ،دا نافذالتصرف دی یا غیر نافذ دی ،پداسې حال کې چې ډیر داسې خلک په مختلفو حیلو ،بهانو دوضعي قوانینو په تصویب کې بوخت دي ،چې آن شریعت سره په ټکر کې وي او دخپلو دنیوي مفادو لپاره داسې قواعد جوړوي.

## داسلامي فقه مختلفې دورې :

اګرکه د اسلامي فقه مختلف پړاوونه تشریح کول د(تاریخ التشریع )اړوند مباحث دي ،دلته یې راوړل مناسب نه بریښي ،خو ددې لپاره چې دلوستونکیو لپاره لاره روښانه نور تبیین هم وشي ،همداسې ددې فقه استقلالیت دتیرو امتونو له فقهو څخه راته ښه جوت شي ،څه رڼا به پرې واچوو ،داهم دیادولوده ،چې پر اسلامي فقه مختلف پړاوونه یا اطوار تیرشوی او مونږ نشو کولای ،چې یو یې له بله دزمان په حیث متمایز کړو ،البته دفقه دلومړي پړاو وخت چې هغه دنبوت مبارک دور دی، چې رفیق اعلی ته دحضرت محمد ﷺ دانتقال په وجه تر نورو غوره دی ،دا ربنتیا هم له نورو وروستیو فقهي مراحلو څخه متمایز او غوره وخت دی، اودې کې کوم شک او شبه هم نشته.

## داسلامي فقه لومړی مرحله یا دنبوت مبارکدور:

حضرت رسول الله ﷺ په خپلو دواړو مکي او مدني وختونو کې پر وحې اعتماد او اتکا درلوده ،تردې چې هغه مسایل چې رسول الله ﷺ پکې پخپله اجتهاد کاوه ،یا به صحابوو دده ﷺ په حضور یا غیاب اجتهاد کاوه، او دا ﷺ به پرې خبرشو ، نو که به یې پر خپل ځای پریښود او یا به یې پر انکار وکړ،نو به یې هم اعتماد پر الهي وحې و ،ځینې خلک دده ﷺ په اجتهاد کې د اثبات او ځینې دنفی خبرې کوي ،حق دا دی ،چې حضرت رسول اکرم ﷺ په هغو مسایلو کې اجتهاد کړی ،چې وحی پکې نه وه ،نو کله خو الله ﷻ په همدې اجتهاد ثابت پریښی، او کله یې ورته داسې څرګنده کړې، چې دده ﷺ ذهاب خلاف اولی دی .

ددې څخه جوته شوه، چې دغه زمانه دیو او بل په فقه نه وه اغیزمنه شوي ،داځکه چې حضرت محمد ﷺ امي وو ،او له کوم معلم څخه یې زده کړه نه وه کړې ،نو هرڅه پر وحی بناء وو ،هو هغه مهال ځینې عرفونه او عادات وو ،چې خلکو به کول ،ځینې داسې وو ،چې شارع پر ځای پریښودل او کله ګورو ځینې چې داسې رسمونه او رواجونه یې باطل کړل ،لکه دتبنی عرف ،دظهار عرف، ځینې هغه نکاح ګانې چې عربو کې هغه وخت دود درلود ،یا لکه دسود رواج چې دهغه وخت عربانو کې یې عرف درلود او داسې نور..................

په الموسوعة الفقهية کې لیکي: چې پدې دوره کې یوازې قرآن کریم تدوین شو، او د نورو له تدوین څخه نهی لدې امله وشوه، چې په خلکو د قرآن کریم او د رسول الله ﷺ د احادیثو تر منځ د نه تفکیک له کبله التباس رانشي، چې همدا کار تیرو امتونو کې شوی و، هغه داسې چې دوئ د الله ﷻ کلام له انبیاوو، علماوو او صوفیانو د هغې سره ګډ کړی و، او دې ټولو ته به یې کتاب مقدس وایه.

لیکن د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه او حضرت علی رضي الله عنه غوندې صحابه ووته، د احادیثو د لیکلو اجازه وه، عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه ته د احادیثو د تدوین اجازه ورکړل شوې وه، چې د (الصادقة) په نوم یې خپله صحیفه کې هغه احادیث ولیکل، چې له رسول الله ﷺ څخه یې اوریدلي وو، او حضرت علي رضي الله عنه ته ددې اجازه شوې وه، چې ځینې هغه مسایل ولیکي، چې د دماء (وینو) او دیاتو سره اړه



لري، لکه په دې عبارت کې: وَلَمْ يُدَوَّنْ فِيهِ هَذَا الْعَهْدِ إِلَا الْقُرْآنُ الْكَرِيمُ. وَقَدْ نُهِيَ عَنْ تَدْوِينِ غَيْرِهِ خَشْيَةَ أَنْ يَخْتَلِطَ عَلَى النَّاسِ كَلَامُ اللَّهِ بِكَلَامِ الرَّسُولِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا وَقَعَ لِلْأُمَمِ السَّابِقَةِ، حَيْثُ خَلَطُوا بَيْنَ كَلَامِ اللَّهِ وَرُسُلِهِمْ وَأَحْبَارِهِمْ وَرُهْبَانِهِمْ، وَاعْتَبَرُوهَا كُلَّهَا كُتُبًا مُقَدَّسَةً مِنْ عِنْدِ اللَّهِ، وَلَكِنْ أَذِنَ لِبَعْضِ الصَّحَابَةِ أَنْ يُدَوِّنُوا أَحَادِيثَهُ الشَّرِيفَةَ، كَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، فَقَدْ كَتَبَ مَا سَمِعَهُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَمَّى صَحِيفَتَهُ هَذِهِ "الصَّادِقَةَ"، وَأَذِنَ لِعَلِيٍّ كَرَّمَ اللَّهُ وَجْهَهُ أَنْ يَكْتُبَ بَعْضَ الْمَسَائِلِ الَّتِي تَتَّصِلُ بِالدِّمَاءِ وَالدِّيَاتِ.

حضرت رسول ﷺ د نبوت د (۲۳) عمر څخه پس رفیق اعلی ته رحلت وکړ، خو دده ﷺ لومړنی کار دا و، چې د خلکو عقاید اصلاح کړي، هغه که د الله ﷻ ته سره یې تعلق درلود، یا د رسول الله ﷺ د تصدیق په اړه و، او که د قیامت د ورځې سره یې اړه درلوده، همداسې د مکارم الاخلاق خواته بلنه یا د رذایلو له اصولو نه څخه نهی ددې عهد له کارنامو څخه وو، او په مکي عهد کې چې د ذبایحو په شان کوم احکام تشریح شوي، هغه هم د توحید سره مرتبط وو، خو په مدني دور کې عملي تشریعات پر له پسې راغلل او خلکو ته شرح شول، تر هغې پورې رسول الله ﷺ رفیق اعلی ته نه دی منتقل شوی، ترڅو چې یې تشریع تکمیل کړه او په اکثرو امورکې یې عملا تطبیق کړه، که هغه معاملات، مناکحات، عبادات، عقوبات او داسې نور وو........ الله ﷻ ربنا تیا فرمایلي چې: { الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا } (سورة المائدة / ۳)

## د علم فقه دویمه مرحله یا د حضرت شیخینو رضی الله عنهما دوره

دا هغه مرحله ده، چې له نبوت څخه وروسته پیلیږي، دا دوره پدې سره بیله ده، چې ډیرې نوې پیښې پکې له نبوي ﷺ عهد څخه وروسته رامنځته شوي، ډیر فتوحات وشول، د مسلمانانو له نامسلمانو هغو سره اختلاط پیل

شو ،چې خپل جلاعادات او رسومات یې درلودل،هغه چې عربو کې نه وو ؛او پدې نو یو پیښو کې د الله ﷻ حکم پېژندنه اړینه وه ،لکه چې مخکې مو وویل هیڅ داسې موضوع به نه وه ،چې هلته پکې کوم شرعي حکم نه و ،او دا زمانه د هغو صحابه وو ص د شتون له امله متمایزه وه، چې هغوئ فقاهت درلود ،نو چې کله به کومه نوې پیښه رامنځته شوه، رجوع به هم دوئ ته کیده ،پدې صحابه کرامو کې ځینې داسې وو ،چې ډیرې فتواوې به یې ورکولې، چې د دوئ شمیر به (۱۳) ته رسیده ،لکه حضرت عمر ﷺ، حضرت علی ﷺ، زید بن ثابت ﷺ، حضرت عایشه صدیقه رضی الله تعالی عنها ،حضرت عبد الله بن عمر ﷺ، حضرت عبد الله بن عباس ﷺ، حضرت معاذ بن جبل ﷺ او د حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ په څیر شخصیتونه پکې شامل وو ،که چیرته د دوئ ټولې فتواوې راټولې شوې وی، نو تر اوسه به د هر یوه څخه یو لوی کتاب جوړ شوی و........

د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ په شان صحابه کرام، پکې د فتوی له حیثه متوسط وو ،چې دده فتواوې له مابعد شخصیتونو څخه کمې پدې وې ،هغه چې د حضرت رسول الله ﷺ له رحلت څخه وروسته یې ژوند اوږد نه و ،ځکه دا په (۱۳) هجري کال کې وفات شوی ،دده له خورا مهمو کارنامو څخه دا وه ،چې د مرتدینو او د زکات د مانعینو فتنې یې ختمې کړې ،چې ددې نه وروسته یې روم او فارس ته د اسلامي لښکرو سوق الجیشي وکړه ،همداسې حضرت عثمان ﷺ او حضرت ابوموسی اشعري ﷺ دي، که چیرته د دوئ فتواوې هم راجمع شي ،نو رسالې به پرې ډکې شي.

ځینې مجتهد صحابه داسې وو ،چې د اجتهاد پر وخت به یې د تشریع په روح هغه وخت اعتماد کاوه، چې نصوصو به یې تایید وکړ،چې د دوئ امام ،حضرت عمر ﷺ او بیا حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ و ،او ځینې بیا داسې وو ،چې په حرفیت یې التزام کاوه، چې هغوئ کې حضرت عبد الله بن عمر ﷺ شامل و.

ددې دور په لومړیو او مخصوصاً د حضرت شیخینو (حضرت ابوبکر ﷺ او حضرت عمر ﷺ) د خلافت په دوران کې د کتاب او سنت څخه وروسته د اجماع په نوم دریم مصدر هم رامنځ ته شو ،چې ددې دواړو نه ،وروسته چې څوک راغلل هغوئ ته د مسایلو د حل ښکلې مرجع شوه ،کله به چې کوم پیښه رامنځ ته شوه ،نو خلیفه به فقهاء راوغوښتل ،هغوئ چې په علم وفضل کې خورا معلومې او مشهورې څیرې وې،نو دوئ ته به دا پیښه مخکې کښیښودل شوه ،که به یې په یوه رأیه اتفاق راغی ،نو اجماع به وبلل شوه او بیا به یې د مخالفت جواز نه و، په الموسوعة الفقهیة کې لیکي (وَفیصَدْرِهَذَاالعَهْد ،وَبِالتَّحْدید فیعَهْد الشَّیْخَیْنأَبیبَکْر وَعُمَرَرَضِیَاللّٰهُعَنْهُمَا جَدّمَصْدَرٌثَالِثٌسِوَیالکتَابِوَالسُّنَّةکَانَ مَرْجِعًالِمَنْجَاءَبَعْدَهُمَا ،أَلاوَهُوَالإِجْمَاعُ) ،لکه د جدې (نیا) دوراثت مسئله کې ،چې سدس به اخلې او یو هنه بلکې ډیرې به پکې شریکانې وي ،همداسې د قرآن کریم جمع کول او لیکل چې دا هم د اجماع له مخې شوي دي، خو شرعي حجت ګرځیدلی دی .

## د علم فقه دریمه مرحله یا تابعینو دور

ددې دورې امتداد تر صغارو صحابه وو پورې رسیده ،د علم فقه ددې دورې دوه ستر امتیازات دادي، چې پکې د علم فقه دوه لویې مدرسې جوړې شوي ،یوه مدرسه په حجاز او بله په عراق کې وه ،البته ددې دواړو مدرسو مشران او منتظمین صحابه کرام وو ،ځکه حجاز کې د مکې مکرمې د مدرسې زعیم او مشر ترجمان القرآن حضرت عبد الله بن عباس ﷺ ،او بیا ددې نه وروسته دده مولی( عکرمه او ابن جریج )وو ، د مدینې منورې د فقهي مدرسې ستر مهتمم او مشر حضرت عبد الله بن

عمر ﷺاو دده څخه وروسته له تابعينو نه( سعيد بن مسيب رح ) و ،دعراق دمدرسې داهتمام اوزعامت چارې لومړی دجليل القدرصحابي حضرت عبدالله بن مسعود ﷺپر غاړه اوبيا ددې نه وروسته دده دشاګردانو چې يو يکې (حضرت علقمه رح )اوبيا( ابراهيم النخعي رح ) بيا (حمادرح ) او بيا حضرت امام ابوحنيفه رح وو ،المکتبة الشاملة کې دتاريخ التشريع او نوروپه حواله ليکي ،چې دحجاز دفقهي مدرسې داجتهادپر وخت اعتماد زيات وخت پر کتاب او سنت اوډيرکم په رأيه باندې ځکه و ،چې يو خو حجاز کې محدثين ډيرو و ، او بل دا درسالت کورو ،نو دحديث په سند کې به يې ايله يوه واسطه له حضرت پيغمبرﷺسره راتله .

دعراق دفقهي مدرسې په باب چې حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ يې زعامت کاوه او دا يې مؤسس و ، دوئ داسې ليکي چې(أَمّاالْمَدْرَسَةُالأُخْرَى - وَهِيَمَدْرَسَةُالْعِرَاقِ فَكَانَتْتَلْجَأُإِليالرَّأْيِكَثِيرًاوَالرَّأْيُعِنْدَهُمْيَرْجِعُإِمّاإِليالْقِيَاسـا لأُصُولِيِّ،وَهُوَإِلْحَاقُمَسْأَلَةٍلاَنَصَّفِيهَابِمَسْأَلَةٍفِيهَانَصٌّشَــرْعِ يٌّ،لِعِلَّةٍجَامِعَةٍبَيْنَهُمَا ،وَإِمّارَدُّالْمَسَائِلِالْمُسْـتَحْدَثَةِإِلِيقَوَاعِدِالشَّرِيعَةِالْعَامَّةِ؛............يعنې عراق کې غاليه شيعه ګان چې آن کله به يې حضرت علي ﷺالعياذ بالله خدای ﷻاو کله به يې له خدای ﷻسره مشابه کاوه ،همداسې به ملحدانو ،خوارجو او نورو فتنه ګرو ډلو چې شميريې ډير وو ، کوشش يې داو ،چې دين کې تلبيس اوخلط پيدا کړي ،نومجبوراً ورته ددې مدرسې استاذانو درو ايت دقبوليت شروط سخت کړل ،اوددط لپاره يې غبنتلې قيودات ولګول ،دروايت په قبوليت کې به فقهاوو ډير تفکرکاوه، او پاخه شرطونه يې ورته کښيښودل ،چې له امله يې دفتنو دروازې بندې شوې ،دانو داسې شرطونه وو ،چې دحجاز فقهاوو ،دروايت دقبلولو لپاره نه وو ايښې، او نه يې ددې التزام کړی و ،نو چې به روايت الحديث پدې شرطونو پوره نه و ،نو نه به يې مانه، ځکه يې دنويو او مستحدثو فقهي مسايلو حل دشريعت په عامو قواعدو کاوه او يا به يې زيات وخت پداسې رايه کاوه ،چې له اصولي قياس سره به يې پيوند درلود ،چې داډول قياس دادی چې يوه داسې موضوع چې نص پکې نه وي ،دکوم مشترکه علت يا جامع په بنسټ دداسې مسئلې سره په حکم کې مرتبط کړي ،چې په هغې کې نص راغلی وي، نو دمقيس او مقيس عليه حکم سره يو شي.

دعراق فقهاووبه دصحابي عمل معتبر باله ،خو کله به چې دده له منقول روايت سره به په تصادم کې و ،نو دوئ به ويل ،چې دده راويت يا منسوخ شوی او يا مؤل دی ،همداسې به دوئ ويل چې کوم ثقه راوي ،چې ديوې عامه بلوی خلاف روايت وکړي، دا يا منسوخ دی او يا تيروتی دی چې دا دده قصدي کار نه وي ،هو که به کوم قوي روايت پيدا شو ،او يا به پکې دتيروتنې احتمال کم و ،نو به يې دمسئلې داثبات لپاره مانه .

داهم بايد ومنو ،چې حجاز کې هم د(ربيعه بن عبدالرحمن )چې په ربيعة الرأی باندې مشهور و ،اوداامام مالک رح استاذ هم و ، داسې فقهاء وو ،چې رأيه به يې دنويو مسايلو په حل کې معتمده بلله، او همداسې په عراق کې داسې فقهاء وو ،چې اخذبالرأی به يې بد باله ،لکه (عامر بن شراحيل) چې په (الشعبي) مشهور و.

(فَقَدْعُرِفَفِيهَذَاالعَهْدِمِنْالحِجَازِيِّينَرَبِيعَةُبْنُعَبْدِالرَّحْمَنِ،الْ مَشْهُورُبِرَبِيعَةَالرَّأْيِ،وَهُوَشَـــــــيْخُالإِمَامِمَالِك. كَمَاكَانَفِيالعِرَاقِمَنْيَكْرَهُالأَخْذَبِالرَّأْيِكَعَامِرِبْنِشَــرَاحِيلَالْمَ شْهُورِبِالشَّعْبِيِّ. )

دفقه ددې دريمې مرحلې زيات علماء او حملة العلم موالي يا آزادشوي غلامان وو ،لکه په مدينه کې د(عبدالله بن عمر ﷺ)مولی (نافع )، په مکه مکرمه کې دعبدالله بن عباس مولی (عکرمه )په کوفه کې دبني

والبه مولی (سعید بن جبیر)، په بصره کې امام حسن بصري رح او ابن سیرین رح، په شام کې دامام اوزاعی) استاد (مکحول بن عبدالله)، په مصر کې (یزید بن ابي حبیب) چې دا دامام اهل مصر (لیث بن سعد) استاد هم و، او دا سې نور.. البته د (حضرت سعید بن مسیب، عامر الشعبي او علقمه بن قیس النخعي) غونډې سوچه عرب تو کمه هم پدې دور کې وو، چې ځانونه یې علم ته وقف کړي وو، دفقه دا عصر او زمان داموي خلافت سره مصادف و، خو دامهال فتنې یوازې په دار الخلافه کې محدودې وي، بهر یې لا پوره سرایت نه وکړی، همدا مهال به فقهاوو او علماوو، یو له بل سره مناظرې او مناقشې کولې اودحق په درک سره به یې یو بل ته تنازل هم کاوه، خو مجموع کې دا دور هم دخیر دور فقاهت و، او رسول الله ﷺ یې هم په باب دخیر او صلاح شهادت ورکړی: (فَقَدْصَحَّعَنْرَسُولِاللّهِصَلّىاللّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَأَنَّهُقَالَ: " خَيْرُالنَّاسِـــقَرْنِيثُمَّالَّذِينَيَلُونَهُمْ،ثُمَّالَّذِينَيَلُونَهُمْ ") رواه الشيخين)

## دعلم فقه څلورمه مرحله یا دکبارو تابعینو دوروستنو او صغارو تابعینو دلومړنیو عصر:

داهغه مرحله ده، چې دکبارو تابعینو وروستني علماء او دصغارو تابعینو لومړنیو علماوو پکې ژوند کاوه، یا په بل عبارت دادعادل امام (عمر بن عبدالعزیز رحمه الله تعالی) دخلافت دور دی، یوه یادونه ضروري ده، چې دلته دمرحلو او پړاوونو څخه چورلټه زماني انقطاع نه ده مراد، مراد بلکې یوه زمانه بله کې متداخله ده......ددې څلورمې مرحلې خصوصیت دادی، چې پدې زمانې کې دسنة الرسول ﷺ یا احادیثو دتدوین چارې ترسره شوې او داهغه وخت و، چې کله قرآن کریم سینو او صحیفو کې محفوظ شو، او هر داسې کوربه نه و، چې له قرآنه به خالي و، نو همداسې مهال د امیر المؤمنین عمر بن العزیز رح شرح الصدر پدې وشوه چې هسې نه چې د رسول الله ﷺ روایات او سنت ضایع شي، نو علماوو ته یې امر وکړ، چې احادیث دې مدون کړي، دا نو داسې مهال دی، چې احادیث دصحابه وو او تابعینو له فتواوو سره مختلط شوي وو، او ددې ویره وه، چې خدای ﷻ مکړه ضایع به شي نو علماوو په پوره جهد او کوښښ سره دا کار وکړ او سنت یې له فتاو څخه جلا او تنقیح کړل.

علماوو دامهال ډیرې علمي لاسته راوړنې درلودې، او په لغت، ادبیاتو، تفسیر.........کې یې تخصصونه کړي وو، تولو دعلم فقه او سنت تدوین ته ملا وتړله، او دا چاره ښه انجام شوه، چې اوس دادی هرڅه صفا او له ګډوډیو خلاص دی، دهمدې مرحلې په وروستیو کې داسې انتظامات وشول، چې مذاهبو ظهور وکړ، او د پنځمې مرحلې په لومړیو کې دمذاهبو دائمه وو لپاره دا یو تمهید شو، او دیوې مدرسې په بڼه کار پیل شو. یعنې ددې مرحلې په لومړیو کې داحادیثو تدوین او دفتاوو تنقیح وشوه او په وروستۍ مرحله کې یې دمذاهبو ظهور وشو.

## . دعلم فقه پنځمه مرحله یا داجتهاد زمانه

داپړاو دهغې علمي نهضت سره مل پیل شو، چې ګرد اسلامي دولت ته شامل و، دا دوره داموي یانو دوروستیو څخه پیل او نږدې دڅلورم هجري قرن تر آخره پورې یې جریان وموند، خو هیڅ یو ه تاریخ پوه لکه مخکې موچې وویل، ددې زماني مراحلو لپاره دقیقه اندازه نشي ټاکلی، خو دابه وو ایو چې همدې زمانه کې دمذاهبو لوی لوی امامان راښکاره شول او دامت ستر و مجتهدینو پکې ظهور وکړ، چې همهاله ورسره فقهي مذاهبو هم ظهور او بروز وکړ، مخکې ددې څخه چې دې قرن کې دفقهاوو طبقات وڅیړو، غوره به دا وي، چې دې عهد کې دیوه نوي علم هغه چې دعلم فقه سره اړه لري (علم اصول فقه) په تدوین بحث وکړو نو ربیا..

## دبرتانوي میډیا اعتراف:

اسلم امید

# افغانان له اسلام پرته بل دین نه مني...

وروستیو کې برتانوي میډیا اعتراف وکړ، چې افغانستان کې میشت قومونه او خلک په ریښتنې توګه د اسلام سپېڅلي دین ته وفادار او له زړونه د اسلام سره مینه لري!! د امریکا په مشرۍ دلویدیځ دګډ یرغل وروسته ډیره تمه وه چې لوی شمېر افغانان به د حالاتو جبر دیته اړباسي، چې (نعوذ بالله) اسلام ته په شاګرځولو نور ادیان او مني، لیکن د یوې نیمې لسیزې راهیسې هلته لویدیځ وال پوځیان شتون لري، ولیدل شول چې افغانان د اسلام پرته بل دین نه مني، د دغه څېړنې له مخې: د نورو آسیائي هېوادو برعکس افغانستان هغه هېواد دی چې پکې د عیسوي دین پیروان د نشت په حساب دي اوس جوته شوه چې افغانستان کې د عیسویت په ګډون د بل هر دین لپاره تبلیغ او کوښښونه په بشپړډول ناکامه شوي.

برتش خبري اژانس: پخپله عربي ویب پاڼه کاري: افغانستان کې د طالبانو پرضد جنګ د دولس کلن جنګ وروسته د امریکا او ناټو ځواکونه د شکست سره مخ دي، هلته د عیسویت د تبلیغ لړ کې کارکوونکې اداري او تنظیمونه د بې دریغه لګښتونو وروسته هم د افغانانو په مرتدولو کې د ناهیلۍ ښکار دي.

د خبري رسنیو له مخې: روانه میاشت کې برتانیې یوه داسي افغان ته پناه ورکړه، څوک چې په ۱۲ کلنۍ کې په کال ۲۰۰۷ ز کې له خپل هېواده د جنګونو له امله برتانیې ته لاړو، هلته څه وخت پس یې د ملحد کیدو دعوه وکړه او برتانویانو ته یې د دې دباور ورکولو هڅه وکړه: که دی بیرته افغانستان ته لاړشي، نو هلته به ووژل شي، په دې سره برتانوي حکومت لخوا ورته مؤقته پناه ورکړل شوه، کاتولیک عیسوي فرقې هغه ته په پناه ورکولو نیوکه درلوده، هغوئ غوښتنه کوله چې هغه باید د الحادي نظریاتو منلو په ځای د عیسویت دین قبول کړي، خو هغه د دې څخه ډډه کوله

کاتولیکانو ویلي: د دغه سړي پالنه چې دیوه مسلمان په توګه شوي، هغه دلته یوائې د تابعیت ترلاسه کولو په لالچ ملحدانه نظریات قبول کړي، له دې وجې دوئ ورته د شک په نظر ګوري، ولې د الحادي نظریاتو څښتن په توبه ویستو دویم وار بیا مسلمان کیدای شي، د خبري منابعو له قوله: د برتانوي دولت ادارو لپاره د یوه افغان له لوري، د ملحدانه نظریاتو قبلول له دې پلوه اهمیت لاره، چې د هغه په نوازش او پالنه به ډیرې افغان ځوانان د عیسویت لورته مات

کړي، سربیره په دې چې کاتولیک مذهبي فرقې هغه ته دتابعیت ورکولو مخالفت کا وه، چې په سبب یې هغه سره خواخوږي لرونکې ادارې او چارواکې له سختو ستونزو سره مخ شول قانونپوهانو اوحقوق پوهانو چې دبرتانوي حکومت څخه دهغه لپاره دپناه ورکولوغوښتنه کوله او دلیل یې دا و چې افغانستان کې دمرتد پشان ملحد هم په مرګ محکومیدای شي، له دې وجې ښه قوي امکان شته که دغه ملحد افغان له برتانیې وشړل شي هلته په افغان ټولنه کې به خامخا دمرګ له ګواښ سره مخ شي، دخبرې سرچینو په وینا:دحقو پوهانو او کاتولیک فرقې پاپانو ترمنځ داوږدو بحثونو اومباحثو وروسته دبرتانیې کورنیو چارو وزارت هغه ملحد افغان ته د۱۹۵۱ زکنوانسیون دپریکړې لاندې:پناه ورکړه ، البته اوس په دې اړه بحثونه دوام لري، هغه ته دپناه ورکولو په سر دکاتولیکانو او قانپوهانو ترمنځ په یوبل نیوکو زور مونډلی ، دافغان ملحد قانوني وکیل:(شیبوپارک) وایي: پناه ورکوونکي چارواکي اوس په دې اړه دتردد ښکاردي چې یوه ملحد ته یې څنګه پناه ورکړه؟ ولې دهغوئ په اند دملحد دجرم درجه دمرتد په پرتله کمه ده او دالحادي نظرونو خاوندانو ته دمرتدانو په پرتله ډیر ګواښ نه وي متوجه. دراپورو نو له مخې: داسلامي لاربښوونو څخه دبغاوت کولو له امله یوه ملحد افغان ته دپنا ورکولو پېښه لومړۍ ده دبرتانوي رسنیوله قوله:ددې پیښې څخه وړاندې دافغانانو دمرتدولو پیښو نه څرګندیدل ددې ښکارندویه کړي چې دافغانستان دننه دټولنیزو اقدارو اونظریاتو دتغیرولو لپاره هرڅومره هڅې وشي، مثبتې پایلې نلري، اوس یا وړاندې چې هر څومره کوښښونه شوي، هغه ټول ناکام شوي، دیادې سرچینې په وینا: افغانستان کې اوس مهال دامریکا او اروپا ګڼ تنظیمونه دعیسویت په تبلیغ لګیادي، یو امریکایي سرتیری( براین بکس ) چې درې کاله وړاندې کله له افغانستانه امریکا ته ستون شو ،هغه هلته اعتراف وکړ، چې دوئ افغانستان کې دعیسویت دتبلیغ لپاره په افغانانو دبایبل پښتو اوفارسي نسخې ویشلي، هم دا راز څه موده دمخه یو امریکایي ټلویزون داسي انځورونه خپاره کړل په کومو کې چې لوی شمیر امریکایي عسکر دعیسویت په تبلیغ لګیادي، اوهم په ځینو کې لیدل کېږي چې امریکا یې عسکرو ته دعیسویت دتبلیغ ځانګړې روزنه ورکوي.

په دې سربیره دعامه رسنیو په راپورونو افغانستان کې دامریکا اوبرتانیې عسکر دعیسویت دتبلیغ لپاره کوښښونه کوي، دهغوئ په اند: ددې ټولو کوښښونو باوجود دافغانانو دمرتد کولو پیښې ، په نشت حساب دي، عربي رسنیو هم اعتراف کړی دی چې په افغان ټولنه کې خلک داسلام سره بې پایه محبت لري او داسلام ریښې پکې ښې کلکې دي، بې بې سي عربي منلي چې افغانان په دې ویاړي چې هغوئ ازاد اوخپلواک پاتې دي، هغوئ دجهاد اوجنګ دلارې پرته دتصوف دلارې هم داسلام دپراختیا لر کې ستر خدمتونه کړي، افغانستان چې همیش ازاد پاتې دی، تل یې دبهرنیو عقاید اونظریات ندي قبول کړي

هغوئ تل دغیر اسلامي افکارو سره جنګیدلي، په کوم چې نن هم افغان وګړي ویاړي.

بې بې سي عربي داهم وایي:اوس دافغانانو په دې باور او اعتماد کې څو زیاتوالی راغلی کمی نه، دنورو آسیایي هېوادو په نسبت له دې پلوه هغوئ پخپل تاریخ ویاړ اوناز لري، چې تل یې بهرنې ځواکونه له خپلې خاورې شړلي، برتانوي میډیا په دې راپور کې دشوروي لښکرو په ضد دافغانانو مقاومت، دطالبانو په لاس داسلامي حکومت قیام ته هم اشاره کړي، چې په ټولیزه توګه پخپلو اقدارو ټینګ ولاړدي او دبرتری احساس لري

# اوباما به اعلام اختتام جنگ

## بر شکست امریکا در افغانستان اعتراف کرد

نوسینده. مجاهد

روزی قبل رئیس جمهور امریکا بارک اوباما در پنجمین سخنرانی خویش به ملت امریکا، صراحتا اظهار داشت که امریکا امسال ۲۰۱۴م جنگ افغانستان را خاتمه می بخشد و نیروهای خویش را از آن کشور به امریکا بر می گرداند.

اوباما استثنائی در اظهارات خود نیز داشت که اگر اداره کابل با امریکا پیمان امنیتی را عقد نماید درآن صورت تعدادی کمی از نیروهای امریکا و ناتو در افغانستان باقی خواهد ماندند، تا به اصطلاح اوباما، به هراس افگنان موقع باز گشت به افغانستان و تهدید به امریکا رانه دهد.

سخنان اوباما از زاویه های مختلف قابل بررسی و دقت است، ولی اینجا سعی خواهیم نمود که این سخنان را روی اعلام اختتام جنگ در افغانستان و تاکید بر باقی ماندن شماری از اشغالگران امریکایی تحت بررسی و تحلیل قرار دهیم:

اعلام اختتام جنگ از طرف امریکا خصوصا به زبان اوباما رئیس جمهور وسر قوماندان اعلی تمام نیروهای آمریکای، صراحت بر اعلام شکست امریکا در جنگ افغانستان است.

درحالیکه سر قوماندان اعلی نیروهای امریکایی بر شکست در جنگ اعتراف می نماید، پس ادعای باقی گذاشتن شماری محدودی از نیروها به امید حفظ وضیعت اشغالی افغانستان، کاملا نقیض اعتراف قبلی و نمایانگر ادامه پالیسی جنگ طلبانه امریکا در جهان اسلام است، جنگی که اکنون برای ملت امریکا هر گز مفهومی ندارد جز تحمل تلفات جانی و زیانهای پی هم اقتصادی. زمانی که جنگ در تاریخ بشریت ازجانب نیروی یورش گر آغاز میشود، اختتام نبرد و جنگ حتما دارای پنج حالت می باشد:

۱ـ اختتام جنگ زمانی اعلام میشود که جانب مقابل جنگ، با شکست مواجه شده و نابود گردد.

۲ـ درصورت عدم نابودی جانب مقابل، باید در اثر فشارهای نظامی سر تسلیم خم نماید واسلحه بر زمین بگذارد.

۳ـ به میان آمدن سازگاری باهم، یعنی هر دو جانب بدون اینکه یکی بر دیگر برتری حاصل نموده باشند بایدروی مذاکرات به یک توافق سومی دست یابند.

۴ـ به اثر فشارهای نظامی و کوبیش، جانب مقابل مایوس شده فرار رابر قرار ترجیح دهد وصحنه را ترکی نماید.

۵ـ اینکه جانب آغازگر جنگ بدون اینکه کدام دست آورد داشته باشد، اعلان اختتام جنگ نماید و عقب نشینی کند، در این صورت معلوم است که جانب یورشگر حوصله جنگی را از دست داده وبه شکست مواجه گردید.

بدون در نظر داشت موارد فوق، تصور بیرون رفت از جنگ و اعلان اختتام آن هرگزممکن نیست.

پس بر میگردیم به اعلام یک جانبه اختتام جنگ از طرف اوباما:

ـ آیا نیروهای امریکایی تحت فرماندهی اوباما توانسته اند جانب مقابل جنگ یعنی مجاهدین افغانستان را نابود کنند؟

ـ آیا جانب مقابل امریکا(امارت اسلامی افغانستان) روی فشارهای دوازده ساله نیروهای اشغالگر آمده اند تا اسلحه به زمین نهند و سر تسلیم به اهداف آمریکایی خم نمایند؟



ـ آیا روی کدام نشست و توافق مستقیم یا غیر مستقیم هر دو جانب (امریکا و امارت اسلامی افغانستان) به کدام توافق سومی دست یافته اند تا روی آن جنگ خاتمه یابد؟

ـ آیا به اثر استعمال نیرو امریکایی (با استفاده از تمام امکانات جنگی عصر کنونی) مجاهدین از صحنه جنگ فرار نموده اند، تا میدان جنگ خالی بماند و نیاز به اعلام اختتام جنگ باشد؟

ـ آفشن اخیر در صور تیکه جانب مقابل جنگ (امارت اسلامی افغانستان) نابود نه شده، بلکی نیرومند تر شده باشد، به فشارها هم تسلیم نه شده است، روی کدام توافق با امریکا متار که جنگ هم نه کرده ونیز پا به فرار هم نه گذاشته است، بلکی بر عکس دوازده سال است که با ۴۹ کشور مجهز ونیرومند جهانی در گیر است، پس اعلام اختتام جنگ از طرف جانب آغاز گر جنگ چه مفهومی را افاده میکند؟

پاسخ واضح است، امریکا اعتراف نمود که دیگر نه میتواند جنگ افغانستان را با حجم و ثقلی که دارد تحمل کند، بلکی از موقف خود عقب نشینی می کند و به اعلام اختتام جنگ، دیگر این جنگ پر مصرف را باخت ومیدان را ترک می نماید، این اعلام اگر چه در لفافه صورت گرفت ولی تمام جهان و بشریت شاهد است که امریکا در ظرف دوازده سال بدون اینکه تلفات دیده باشد، مردم ملکی را به شهادت رسانیده باشد، ظلم و وحشت را بر افغانهای بی دفاع روا داشته باشد چیزی بیشتری انجام نه داده است.

نتیجتا اقتصاد خود را از دست داد، به تریلیونها دالر ضایع شد، دها هزار عسکر امریکایی که بدون شک آرمان ها، اهداف و نیز حق زند گی در دنیا داشتند روی پالیسی جنگ طلبانه امریکا به هلاکت رسیدند، معیوب شدند، دوچار مشکلات روانی شدند و رنجهای جنگ فلاکت بار، بی هدف و بی نتیجه را تحمل نمودند.

با در نظر داشت اعتراف شکست، جزء دومی سخنرانی اوباما یعنی حرف از باقی گذاشتن چند هزار عسکر در افغانستان، انسان را متوجه می سازد که سیاسیون امریکای با موجودیت تجربه های دوازده ساله هنوز هم وضیعت را در افغانستان دقیق پی نه بورده اند و هنوز هم میخواهند ناکامی های پی هم را به آزمایش گیرند.

پسوند باقی گذاشتن عساکر اشغالگر، میتوان دو هدف از خود داشته باشد:

۱ـ امریکا نه میخواهد و حاضر نیست جهانیان شکست امریکا را اشکارا مشاهده کنند و آن را پی برند، بخاطر جلو گیری از اعلام آشکار شکست که واضحا تمام منافع امریکا را که من حیث ابر قدرت جهانی از آن بهره می بورد به مشکلات جدی و عملی مواجه می سازد، امریکایها هنوز هم از باقی گذاشتن عساکر در افغانستان حرف میزنند و به گونهء وانمود می کنند که بر وضیعت کنترول دارند.

۲ـ علت دومی حرف از باقی گذاشتن نیروها در افغانستان، هنوز هم امید کاذب سطیره بر منطقه است، که امریکایها آنرا از موقیعت افغانستان در سر می پرورانند .در عمل هر دو علت فاقد صلاحیت تضمین اهداف امریکایها می باشند.

اولا: جهانیان چشم دارند و می دانند، زمانی که زیاتر از یک صدهزار نیروی مجهز به همه تجهیزات لازمه، نه توانست جلو عملیات های مجاهدین را بگیرد و آنهارا شکست دهد، پس ده هزار الی بیست هزار نیرو چیطور میتواند هدف مذکور را بدست آرد؟ در حالی که اکثریت مطلق آفغانها از نیروهای خارجی نفرت دارند ودر مقابل انها از برادران مجاهد خود حمایت عملی و علینی کرده اند و خواهد نمودند.

ثانیا: خیال سطیره بر منطقه از موقیعت جیوپولیتکی افغانستان بعد از جنگ دوازده ساله باید اکنون دیگر در سر پرورانیده نه شود، بازهم به همان دلیل که زیادتر از یک صد هزار نیرو نه توانست بخاطر هدف مذکور بسنده باشند، بیست هزار نیرو چیطور خواهد توانست به آن نایل آید.

از تحلیل فوق واضح میگردد که اعلام اختتام جنگ به زبان اوباما بدون اعلام شکست امریکا در افغانستان چیزی بیشتری نه بود، و ادعای باقی گذاشتن چند هزار نیرو هم دلالت بر خام خیالی و عدم دانستگی از وضیعت به گونه دقیق را اشکار می سازد که در هر دو صورت امریکا با ناکامی مطلق مواجه شده هر گز اهدافی را که میخواست از طریق جنگ وایجاد وحشت به دست آرد آنرا نصیب نه خواهد شد.

اتل.......... ........

# ...امریکا او ناټو کله باروي...!




هغه وخت تیر شو چې نړیوالې میډیا به په جګ ستوني ساعت په ساعت زموږ د مرعوبولو په خاطر ګران هیواد (افغانستان) ته دامریکا اوناټو دنویو ځواکونو درا تلو تاوده راپورونه خپرول، غوښتل یې میړني افغانان وډاروي، دجهاد اومقاومت له لیکو یې کینوي، ورپسې به: دسیاسي شنانندو اوکتونکو په نوم به یې دسي ای ای معاش خواره ځانګړو مرکو ته او تبصروته دعوتول، هغوئ به دسي ای ای دپلان سره دنویو ځواکونو راتګ داسې تشریحاو چې په دې سره دامریکا اوناټو ځواکونه نورهم قوي شي، یوموټې طالبان کله ددومره ابر قدرت سره مقابله یا دغره وهلې شي، ډیرو جنابانو به داهم ویل: دامریکا اوناټو سره په مات ټوپک اوشلیدلې چاټته جنګیدل له غره سره سر جنګول دي، باید افغانان له دې کاره تیر شي، امریکا دنړۍ یو داسې قدرت دی چې دزمکې په سر دلویشتې برابر شی ترې نه خطاء کیږي، ډیر به ژر به دا څو په شمار طالبان مالبان مړه یا ژوندي ونیسي، بنه داده چې هغوئ وسلې کیږدي او بیر ته خپل عادي ژوند ته ستانه شي

دهغو خلکو لپاره چې دازاد ضمیر خاوندان اوخپلواک احساس لري یقیناً دمیډیا له لارې دغه تبلیغ او پروپاګند اوریدل خواشینوونکي اوځورونکي کاروو، ډیری کسانو له همدې وجې خبرونه او ریدل اولوستل بند کړل

اوځینـــي دپاخـــه ایمـــان اوبـــاور خاونـدان پـــه دې بـــاور وو امریکـــا اوناټونـــه بلکې که دټولې نړۍ ځواکونه هم افغانستان ته راوستل شي بیا به دخدای (ﷻ) دا سنت چې زبر ځواکان په مظلومانو ځملوي بدل نکړي او خامخا به امریکا اوناټو په خجلو ستر ګو او ماتو سرونو له افغانستانه وتلو ته اړ کیږي

نن رښتیا هغه مبارکې شیبې رالنډې او راغلې ښکارې چې د۱۳کلن تاریخ جوړونکي جهاد له بر کته امریکا اوناټو دومره بدشکست خوړلی چې په نا اعلان شوي تو ګه دخپلو ګډو په ترلو لګیادي او نړیوالې خبرې رسنۍ کوښښ کوي چې داسې راپورونه ومومي چې امریکا او ناټو څنګه ؟ په کومه ؟ او کله له افغانستانه ځانونه تیښتې ته جوړوي؟

درسنیو دراپورونو په بنسټ: افغانستان کې دجنګ تر څنګ د امریکا اوناټو ځواکونه په دې هم لګیادي چې دپوځي توکیو اووسایلو دانتقال پروسه په خوراچټکۍ سره بشپړه کړي ددې لپاره دزمکې او هوادواړو لارو نه کار اخلي.

هم داراز امریکا اوناټو دانخلاء بشپړولو په موخه خپلې اماده ګۍ اوتیارې ته پام ډېر کړی دی، ددې لپاره لاوخت په سر سلګونه پوځي مرکزونه اوهډې یې تخلیه کړي اوترې کډالګړدي، هم په زرګونوزره ټنه وسلې اووسایل یې تیار بسته ترلې څو هغه وخت په سر خپلو هېوادونوته ولیږدوي، یوشمیر وسایل غواړي دلته وپلورې او دیوشمیر نورو په اړه اراده لري چې کباړ اوخنثايې وګرځوي، بریښي چې د۲۰۱۴ز دسمبرپورې له افغانستانه دبشپړې انخلاء مطلب تنهاالوتکو ته دپوځیانو پورته کول نه؛بلکې دایوه خورالویه دقیقه پروژه ده.

دبې بې سې خبریال " ډومینګ بیلې " وایي: اټکل دادی چې سږ کال به دمارچ اودسمبر ترمنځ نیږدې دپوځي موټرو، پوځي توکیو اووسایلونه ډک دوه لکه اتلس زره کانتینرونه له افغانستانه وویستل شي، تراوسه ناټوله افغانستانه اتیازره کانتینر ویستلي دي.

برتاینا ددسمبر تر ۳۰مې نیټې پورې کوښښ کوي چې له درې زره نه زیات موټر ، هلیکوپترونه او نور وسایل له افغانستانه بیرته خپل هېوادته ولیږدوي، دبرتانیې دفاع وزارت ویلي: چې دوې ځینې پوځي توکي پلورې اودهغو بیرته وړل نه غواړي، ددغو توکیو دپلورلو کمپنۍ په وینا: تراوسه دوې د دوه زره لاریو برابر وسایل اوتوکي پلورلي دي.

په بیرته منډه کې امریکا تر نورو هېوادو وړاندې ده ، تراوسه یې له افغانستانه نیږدې درې سوه زره ټنه توکي اووسایل ویستلي، البته هغه هم دبرتانیې پشان ټول وسایل خپل هېوادته نه وړي، ځینې غواړي دلته وپلوري او دځینو په کباړولو لګیاده کار کوي.

دبې بې سې خبریال زیاتوي: ناټو چې کوم مرکزونه ترې او په ځای افغان پولیس او عسکر هلته ورځي، هغوئ هلته پاتې اجناس لکه څوکۍ ، میزونه، ټلویزونونه ، کمپیوټرونه اونور ډول ډول څېزونه په غلاخپلو کورونو ته وړي.

مشهوره ورځپاڼه "ډیفنس انالیس" بیاکاږې چې :دعراق په پرتله له افغانستانه انخلاء خورازیاته پیچلې اوله ستونزو ډکه پروسه ده، دیادې ورځپاڼې مدیر "فرانسیس ټوسا" په قول: دناټو ځواکونه له یوه داسي هېواده دوتلو چمتوالی نیسي چې هلته هېڅ سمندري لاره نشته، هم دعادي تګ راتګ اسانتیاوې دنشت برابرې دي، هغه وایي: له عراق سره دافغانستان پرتله کول ناپوهي ده، ولې عراق کې دامریکا سره دکویت مجهزه بندر ګاوه وه، هم داشان دتګ راتګ اسانتیاوې پریمانه وې ، له دې وچې له افغانستانه پوځي انخلاء یو ډارونکی خوب دی.

په هر صورت داهرڅه ددې ښکارندوې کوي چې که خدای کول ډېر ژر به دګران افغانستان دازادۍ سپین سباوون راپورته شي، دافغانستان دخاورې دښمن له بشپړې ماتې اوشکست سره مخامخ دی، دتیښتې اومنډې په حال کې قرار لري، نور دا توان نه لري چې له خپل ناولې شتونه دفاع وکړي، که هر څو هم له ځان وروسته دامنیتي ترون لاسلیکولو په بهانه خپل هرڅو زره عسکر هم پاتې کړي، خپلې شومې ارادې به په افغان ولس تحمیل نکړای شي اونه به یې له ټندې څخه دشکست بد داغ محوه شي اوپاتې شونې به یې هم ورپسي ټیټ او زوړند سرونه وزي له دې پرته کوم بل چانس نه لري .

شهید زوی

# د مصري دولت ناسمې پرېکړې

# او د مصر خطرناک راتلونکی

د مصر ولس تېره ورځ یانې د جنورۍ ۲۵ مه نېټه د خپل پاڅون دریمه کلیزه په داسې حال کې ولمانځله چې د مصر په پلازمېنې قاهرې کې بیاد ګڼو بې ګناه انسانانو وینې توی شوې د فوځي دیکتاتو؛ دفوځ په لاس درامنځته شوي رژیم مخالفین دتحریر میدان ته نه پرېښودل کېدل خود دولت پلویان دفوځ او امنیتي ځوکونو په ساتنه دتحریر میدان ته راټول شوي وو امنیتي ځواکونو دنوي رژیم په مخالفینو ګولۍ وورولې چې په نتیجه کې ۲۹ ځوانان مړه او ګڼ نور ټپیان شول ر؛ پرون یانې د جنورۍ په ۲۴ مې نېټې په دې هېواد کې ۴ چاودنې وشوې چې له دې جملې نه د پولیسو یو مرکز مخې ته په تر شوې یوې چاودنې کې ۵ پولیس مړه او ۴ ټپیان وو

د مصر په ګډوډیو چې وړاندې مو ږ ځو مره لیکنې کړې دي په دې خبره مو پکې رڼا اچولې ده چې دا دلوی اسرائیلی دولت د رامنځته کولو او د منځنې ختیځ د ټولې نقشې د بدلولو د پلان مهمه برخه ده چې تازه بدلونونه دهمدې پلان پر لور یو ستر عملي ګام ښکاري.

پر عربي هېوادونو د لویدیځ پلوو دیکتاتورانو پرضد د تیونس نه ۳ کلونه وړاندې پیل شویو ولسي پاڅونونو ته چې د عرب بهار نوم ورکړل شو هغه مهال ټولو هغو نامتو مسلمانو څېړونکو او پوهانو چې په جور نظر حالات څاري ویلي وو چې: د جابرو دیکتاتورانو لرې کېدل په خپل ذات کې خوشالونکې خبره ده ځکه چې د دیکتاتوري نظام په پرتله په حقیقي معنی جمهوري نظام هم د مسلمانانو لپاره ګټور دی خو دا چې لویدیځ نه غواړي چې عام مسلمانان په خپلو هېوادونو کې د جمهوري آزادیو نه ګټه پورته کړي نو د دیکتاتورانو د تللو نه پس به هم دلته په حقیقي معنو جمهوري نظامونه و نه زغمل شي او هڅې به وشي په هرهېواد کې ګډوډي رامنځته ، ولس او دولت او ولس په خپل منځ کې په جنګونو اخته او دا بدلون چې د بهار نوم ورته ورکړ شوی په خزان بدل کړای شي.

د عراق او لیبیا او بیا ورپسې د شام او مصر روانو حالاتو ته چې وګورو نو رښتیا هم چې درې کلونه وړاندې د بهار نه بلکې د خزان ډېره لویه سیلۍ وه چې په



منځني ختيځ راوالوته ، شام کې يې ډېر لوي خزان رامنځته کړ او د مصر برخليک هم د شام نه بدل نه ښکاري.

د مصري ديکتاتور حسني مبارک دلرې کېدلو لپاره د تحرير څلورلاري کې د خورا اوږدو لاريونونو په نتيجه کې چې حسني مبارک معزول او عبوري اداره رامنځته شوه نو امريکا او نور لويديځ پدې هېله دازادو انتخاباتو حمايت او غوښتنه کوله چې د حسني مبارک د پاتې شونو او نورو سيکولرستانو اتحاد به په قاطع اکثريت بريالی شي ؛ داگومان هم نه کېدلو چې په مالي لحاظ خورا ډېر زيات کمزوری او د ديکتاتورانو په لاس سخت ځپل شوی دالاخوان المسلمون گوند به گينې په انتخاباتو له هغو سيکولرډلو زياتې رايې واخلي د کومو شاته چې ټول لويديځ ولاړ و خو د تمې خلاف د ۲۰۱۲م کال دجون په مياشت کې په ترسره شويو انتخاباتو کې د الاخون المسلمون له لوري ولسمشرۍ ته کانديد محمد مرسی دولس د ۵۲ سلنې رايو په اخستلو دمصر په تاريخ کې رومبنی منتخب ولسمشر وگرځېد او مصري ولس د ۴۲ کلن ديکتاتورۍ نه نجات ومونډ خوله بده مرغه چې دهماغه رومبۍ ورځ نه د غرب په لمسون سيکولر فوځ او سيکولر گوندونو د محمد مرسی د اداري رنگولو لپاره توطئ پيل کړې اولا کال نه وپوره چې د اتبليغات يې پيل کړل چې دمحمد مرسی اداره ناکامه ده او په خپلو کړو ژمنو يې وفا ونکړ ، دې خبرې ته غربي مطبوعاتو ښه هوا ورکړه چې له امله يې د لويديځو اين جی او گانو لبرال تنخوا خواره ، د حسني مبارک پاتې شوني ، قبطي عيسويان او د سيکولر گوندونو اسلام دښمنه عناصر د تحرير څلور لاري ته راووتل او له کوم دليل او و جې وړاندې کولو پرته يې دمحمد مرسی د استعفی ورکولو غوښتنې پيل کړې ؛ ددې سره سم د مرسی په پلوۍ کې په سونو زره مسلمانان د پلازمېنې قاهرې په شمول د هېواد په نېږدې ټولو ښارونو کې واټونو ته راووتل ؛ داچې مخالفين مسلح شوي او د گډوډۍ رامنځته کولو دستور ورکړل شوی و نو دالاخوان المسلمون څو دفترونه يې هم وسوځول او د دواړو اړخونو تر منځ په رامنځته شوي اخ وډب کې يې د محمد مرسی په لسگونو پلويان هم ووژل .

د فوځ دامسئوليت و چې دمخالفينو دوحشت مخه يې نيولې وای خو داچې اصل پلان د فوځ و نو هماغه فوځ چې د ديکتاتور حسني مبارک د لرې کېدلو لپاره د مصر د ټولو خلکو په راوتو يې ترڅلو ښتو ورځو دحسني مبارک دلرې کولو اقدام نه وکړی دلته يې يوائې دمحمد مرسي دادرې پرضد د څلورو ورځو مظاهرو او په تمامه معنی دنامعقولې مطالبې نه پس دجمهوري اصولو سره سم دانتخاباتو له لارې دټاکل شوي قانوني ولسمشر پرضد کودتا وکړه او هغه يې کوم نامعلوم زندان ته ولېږلو او دهغه پرځای يې قبطي عيسوي قاضي منصور عدلي عبوري ولسمشر جوړ کړ.

امريکا چې دديموکراسۍ او جمهوري نظام راوستلو په پلمه پرهېوادونو حملو ته تيارېږي دلته چې جمهوريت ترپښو لاندې شو نو ولسمشر اوباما خو دنړۍ دغولولو لپاره دفوځ پدې اقدام خپل تشويش ښکاره کړ خو له دې اخوا ديته هم چمتو نه شو چې لږ ترلږه دفوځ دې عمل ته کودتا ووايي ،همدا راز نور لويديځ چې ځان دجمهوريت اتل او محافظ بولي له په کمزور ټکوله غندنې پرته يې نه يوائې دا چې دفوځ ددې خو راناوړه اونه بښونکي عمل پرضد عملي اقدام ونکړ بلکې په ښه خلاص مټ يې دعبورې ادارې سره مرستې هم پيل کړې.

دفوځ ترشا همدا دامريکا او نور لويديځ ډاډ و چې دمحمد مرسي دراخوشې کېدو او بېرته ورته دخپل



منصب دسپارلو په موخه دتحریر څلور لاري ته څېرمه درابعه العدویه مسجد چارچاپېره میدان او سرکونو ته راوتو دالاخوان المسلمون په غړو باندې په داګست په ۱۴ مې نېټې فوځ او پولیسو خونړی یرغل وکړ چې پکې دمېرمنـو او کوچنیانو پـه شمول نـږدې ۴ زره تـنـان شـهیدان اوتـر ۱۰ زرو پـورې ټپیـان او پـه زرونـو نـور زندانیان شول.

هغه ملګري ملتونه، ټول لویدیځ، دبشر دحقوقو ددفاع په نوم نړیوالې ادارې او خصوصاً امریکا چې دخپل مطلب په ځای کې دبشر ضد دکوم کوچني جنایت په رامنځته کېدو ټوله نړۍ په سر راخلي دلته یې هم اسلام دښمنۍ ولاړ، دنړۍ دټولو قوانینو ضد، دسترو نه جبرانېدونکو تاوانونو سره مل او دحماقت نه ډک دټول الاخوان المسلمون ګوند دتروریست ګرځولو اقدام وکړ.

دوئ چې ددې اقدام لپاره نوې کومه پلمه رامخې ته کړه هغه نه یواځې دا چې ددې ناوړه اقدام لپاره سبب نه شي جوړېدای پلمه جوړول یې هم ډېرحیرانونکي دي ځکه چې په منصوره ښارکې دپولیسو په مرکزترسره شوې حمله چې پړه یې پرالاخوان المسلمونوراچول شـوې اوهمـدا داوسـني اقـدام لامـل ګرځـول شـوی مسئولیت یې انصاربیت المقدس په غاړه اخستی.



دبشریت ضد دخو را دې ستر جنایت په مقابل کې دغندنې دخو غولوونکو ټکو پرته هیڅ جدي غبرګون ښکاره نکړ چې دا ددې حقیقت ډېر روښانه دلیل دی چې دفوځ پدې وحشت نه یواځې دا چې دوئ راضي وو بلکې ترشا یې دهمدوئ لاس و نو ځکه اوس دامریکا په ډالرو جوړ شوي او پالل شوي دې سیکولرفوځ له حده زیاتپه

,,انصاربیت المقدس،، دسینا په صحرا کې دمېشتو اطرافیانو یو جهادي تنظیم دی، دوئ دبیت المقدس ازادي خپل ستر هدف بولي؛ دا سرائیلو سره دمذاکراتو او په مصر کې دجمهوري سیاست سخت مخالف دي نو ځکه ویل کېږي چې دا ډله دالاخوان المسلمون دسیاست نه ناهیلي ډله ده، دوئ کله ناکله په

اسرائیلي امنیتي ځواکونو بریدونه کوي نو ځکه یې مصري فوځ او پولیس دځپلو لپاره دډېرو ظلمونو نه کار اخلي ،دفوځ او پولیسو دظلمونو نه تنګ شوي دانصاربیت المقدس داډله اوس دمصر فوځ او پولیس هم په نښنه کوي چې په همدې لړ کې دې ډلې دد سمبر په ۲۴ مې نېټې دقاهرې شمال ته پروت په منصوره ښار کې دپولیسو پر یو مرکز دموټر په واسطه فدایي برید وکړ چې پکې یې ۱۵ پولیس ووژل.

سره له دې چې دبرید عاملین معلوم وو ځکه چې انصاربیت المقدس یې مسئولیت منلی و او بل لورته الاخوان المسلمون ددې برید غندنه هم وکړه ، دا یې داسلام خوښو دبدنامولو یوه ناکامه هڅه وګڼله او دپېښې دمنصفانه څېړنې غوښتنه یې وکړه خو دبرید په سبا فوځي کابینې غونډه وکړه او پکې یې اعلان وکړ چې الاخوان المسلمون تروریست ګوند دی ځکه چې په منصوره کې دپولیسو پر مرکز په برید ،پرکلیساو په حملو اود تشدد په نورو پېښو کې لاس لري.

ددې پرېکړې سره سم دالاخوان المسلمون او د دوئ سره په یوه نوع دانواعو دتړاو لرونکو ۱۱ سوه او ۳۰ ادارو مالي حسابونه کنګل شول ،دالاخوان المسلمون په لاریونونو سخت بندیز ولګول شو ،ددې ګوند رکنیت جرم وګرځول شو او دکورنیو چارو وزارت ویاند هاني عبداللطیف اعلان وکړ چې په مظاهرو کې ګډون کونکو ته تر پنځو کلونو دبند سزا ورکول کېدای شي او دتنظیم قیادت کوونکي په مرګ هم محکومېدای شي.

الاخوان المسلمون دډیکتاتور دظلم او جبر نه ډکه دا پرېکړه رد او ویلي یې وو چې دهیڅ ډول ثبوت دوراندې کولو پرته به دا پرېکړه دګوند په کړنلارې او نظریاتو هیڅ منفي اغېزې ونکړي ځکه چې ددولتونو له لورې دا ګوند تل دفشارونو سره مخامخ وي ؛دا پرېکړه یوائې دکاغذ یوه ټوټه ده ،پر موږ به هیڅ اغېزه ونکړي ځکه چې دناسمو تورونو له امله فکر نه مړکېږي ،موږ یوائې خپل رب ته خپل فریاد کوو.

دالاخوان المسلمون سره په اتحاد کې شاملو تمامو ګوندونو هم دا پرېکړه رد کړه او دفوځ له لورې دمحمد مرسي دلرې کېدو پرضد د ۲ میاشتو راهیسې روانو لاریونونو ته ددوام ورکولو هوډ یې څرګند کړ.

دوئ رښتیا هم دبندیزونو پروا ونکړه او دد سمبر په ۲۷ مې نېټې دجمعې په ورځ بیا واټونو ته راووتل چې مصري پولیسو پرې ډزې وکړې ۱۴۷ تنان ټپیان او یو شمېر مړه هم شول ؛په همدې ورځ پولیسو دالاخوان المسلمون سره تړاو لرونکي ۲۶۵ تنان ونیول چې ۲۷ مېرمنې هم پکې وې ؛ په ورپسې ورځ پولیس دازهر جامعې ته ورغلل دالاخوان المسلمون سره تړاو لرونکي ۲۰ محصلین یې ونیول او یو یې وواژه په همدې جریان کې دازهر دوه عمارتونه وسوځول شول چې دولتي رسنیو پرې اخواني محصلین تورن کړل خو محصلینو دا تورونه رد کړل.

خو لنډه دا چې دهېواد ترټولو زوړ هغه ګوند چې تېر ۸۴ کلن تاریخ یې دمسلسل جهد څخه عبارت دی او دخپل وجود په تېر ټول تاریخ کې یې کله هم دمسلح فعالیت پرېکړه نه ده کړې ورته تروریست ګوند ویل ډېر ستر تاریخي حماقت او دمصر لپاره دنه جبرانېدونکو خو را سترو تاوانونو نه ډکه پرېکړه وه.

فوځ او سیکولر ټولې کړئ به ګومان کوي چې پدې پرېکړې به پرهېواد دسیکولرزم دمسلط کولو په لار کې ترټولو ستر خنډ دنړۍ ترټولو زیات منظم او دهېواد ترټولو ستر او قدیم دیني او سیاسي تنظیم الاخوان المسلمون له منځه یوسي ؛ بیا به کوم اسلام خوښی ګوند دانتخاباتو له لارې واک ته ونه رسېږي او دنوي

# کلوریني پاڼي

## دابدال لاسونه

عبدالعلی تسل

دصلیب په توره ټنده دهلال لاسونه بر دي
په مرۍ دامیه بیا د بلال لاسونه بر دي

د اتوم ټیکنالوژي یې فدایي زلمو خنثا کړه
په الحاد کوکارې ګډې ایمانپال لاسونه بر دي

ارمغان دلنډغرو ، شوم ارمان دسیکولرو
قبلیدلی دلته نه شي زموږ پتیال لاسونه بر دي

د قیصر هیلې زنده شوې دیرموک دجنګ مثال دی
دخالد بن ولید داستقلال لاسونه بر دي

دغزا داسمان لمره سهارونه دي په تمه
د مابنام ټغر ټولیږي دمشال لاسونه بر دي

د یوروپ دکوڅو مسته تا تاریخ کتلی نه وو
په تاریخ کې هم په تاسو د ابدال لاسونه بر دي

ستا دبون بیړنۍ غونډې له تسله هیرې نه دي
نن دبون په ګډونوالو اسلامپال لاسونه بر دي

## مود یورپ می چلد

*گمنام*

می چکد خونها ز دل شرمساری را ببین
برسر راه وخیابان پست کاری را ببین
سربرهنه ، سینه لچ ، موها چو کوپان شتر
مود یورپ می چلد کافر شعاری را ببین
لب سرین و پودر و سرخی بود فخر زنان
دین وایمان را نگر ایمان داری را ببین
پیراهن کوتاه وران لچ شده از مود روز
در حق دین نبی این بی وقاری رابیین
شوهر اندر شعبه خود زن رود در کوچه ها
غیرت وهمت چه شد ناموس داری رابیین
مسند پیغمبری پامال کرده قاضیان
برحریم درگه اش ناسازگاری رابیین
رشوه را درشعبه اش چون شیر مادر میخورد

## رازونه

داسې رازونه له تاریخ د زمانې ښکاري
ټول ترې روان یو خیر که کډې مو پر تې ښکاري

د بلاګانو دوجود او د فنا له درسه
هر شی فاني ثبنتن یې مړ داسې نقشې ښکاري

د غلامانو د جوسو په هکله دومره وایم
بې وخته مړي خیر که ستر ګې یې رڼې ښکاري

دا غرور ندی زمونږ د قام د آزادۍ نښه ده
ببرې ږیرې زلفې ول ، لونګۍ کږې ښکاري

پدې پړاو کې د تاریخ زمونږ د نوې فتحې
وخت نږدې شوی ،پر افق سپینې سپېدې ښکاري

# وطنه!

احمدګل ريان

له تا ځار شو اوس نو ځکه غېږه ورکه
د اولاد له ميني ډکه غېږه ورکه

دې تپي مين ته دې وطنه
لږ پسته مسته نازکه غېږه ورکه

د سر تاج يې کړه وطنه چې ښکلا دې
دا نړۍ کړې هکه پکه غېږه ورکه

چې يې بيا درنه جلا نيت بدې نه کړي
دې طالب ته خو ښه کلکه غېږه ورکه

ستا او دين ميني لمبو ته په غېږ ورووست
حوصله يې بيا تازه که غېږه ورکه

ستا ريان هم دا ستا ميني ته محتاج دی
خواشيني کړه ورته ورکه غېږه ورکه

## دسوبې وياړ

عرفان الله عرفاني

غږ دالجهادمو په ممبر کړی
مونږه افغانانو بيا حشر کړی

ځوږ د تکبيرونو لړزوي دنيا
ځکه يې اثرپه لراوبر کړی

بيابه مې د سوبې وياړ په برخه شي
داځل موپاڅون ښه په هنر کړی

# دهلال راج

حافظ قاسم زهيب

ښه چې مو لاس بر شي امريکا او په ناټو باندې
يون به کړو ملګرو د اصحابو قدمو باندې
څوک رانه تهديد نه شي په زور او په وسله سره
رحم د بر ضرور دی په مسلمو پرګنو باندې
ځارو به هر ځای کې د خالد بن وليد لاره
بيا د شپيتو زرو مقابله کړو په شپيتو باندې
دا د طالب جان اقتصادي او د بوشکو ماين
تندر اسماني ده په رينجرو او ټانګو باندې
هر د رب له لاري باغي شوی امپراطور به هم
رب جليل اخته کړي نمرود غوندې خزندو باندې
راج به د هلال وي نور صليب د ټينګيدو نه دی
سپين بيرغ به راشي سپين طالب سپينو لاسو باندې
دا د (زهيب) هيله او ارزو له ولسونو ده
لار به ځان ته ګورو د قرآن په آياتو باندې

داچې له درونه آزانګې راځي
ښکاري چې بلال الله اکبر کړی

با سوترې په غشو لعنتي ستر ګې
هرچا چې زمونږ خوا بد نظر کړی

تورمخ به رقيب ځي له دې کلي نه
دازيري په مابانديې دلبر کړی

بيابه ښاپېرۍ ورته راوړي منګي
نن چنارو سيوری په ګودر کړی

ځمه عرفاني رانه قضا نشي
نيت مې د لمانځه دمازديګر کړی

وړاندي شوي قانون په هکله یې چې کومه ټول پوښتنه کېدونکې وه پکې به هغه نتایج ترلاسه کړي کوم چې ورته مطلوب وو.

دا سمه ده چې دسخني ددیني ګوندونو دلرې کولونه پس به په راتلونکو کېدونکو انتخاباتو کې یواځې غرب او اسرائیلو ته وفاداري ښېرې رامخې ته کېږي ؛ پدې کې به اکثرو مصریانو ګډون نوي کړی خو بیا به هم ملګرو ملتونو ،امریکا او ټول لویدیځ ته قبول وي او دا به په مصر کې ددیموکراسۍ پرلور ښه پرمختګ بولي.

پرمصریانو دنوي قانون پرمسلط کولو کې هم اوسنۍ اداره او فوځ کامیاب شو ؛هغه قانون چې دمنتخب شوي پارلمان له لوري ولس ته وړاندې او دترسره شوي ټول پوښتنې په نتیجه کې د ۲۴ سلنې دقاطع اکثریت له لوري منظور شوی و هغه قانون یې لغوه اعلان کړ فوځ او لاسپوڅې قضا له خپل لوري قانون جوړ کړ او دروانې جنورۍ میاشتې په ۱۴ مې نېټې یې دټولپوښتنې په نوم ولس ته وړاندې کړ ؛ ددې قانون په اړه رای ورکولو کې ایله ۳۸ سلنې ګډون کړی و چې دګډون کونکو اکثریت ددې قانون په حق کې رای ورکړې ،دا قانون نافذ شو او دحیرانتیا خبره ده چې لویدیځو رسنیو دا هم دجمهوریت پرلور یو ښه قدم وګڼلو او هغه قانون چې دمنتخب پارلمان له لوري وړاندې او دولس قاطع اکثریت یې په حق کې رای ورکړې وه هغه یې غیرجمهوري ګڼلو.

نو فوځ او سیکولر ټولې کړۍ خو دنوي قانون په اړه په ټولپوښتنې او په راتلونکو انتخاباتو کې دګډون نه دالاخوان المسلمون دبې برخې کولو په هدف کې کامیاب شول خو پرهېواد دسیکولرزم دنافذ کولو په وړاندې چې الاخوان المسلمون خنډ دی دتروریست ګرځولو په اقدام به دا خنډ له منځه ولاړ نه شي.

الاخوان المسلمون دنړۍ ترټولو منظم تنظیم دی ،دپوخ فکر او ۸۴ کلن مسلسل جهد نوم دی ،دجوړېدا نه ترننه یې ډېر کړاوونه ولیدل او ډېر زیات ظلمونه پرې وشول خو دخپل هدف نه تېر نه شول او نه به یې دجبر او حماقت نه ډکه اوسنۍ پرېکړه او راتلونکي کړاونه دخپل هدف نه واړوي.

هو ! داسرائیلو امریکا او نور لویدیځ چې کوم هدف دی دپوره کېدلو زیات خطر یې ترسترګو کېږي د اوسنۍ پرېکړې له مخې چې دهېواد اکثریت تروریستان وګڼل شول دا کوچنۍ خبره نده ،دا خو را ډېره خطرناکه خبره ده ؛چې دالاخوان المسلمون غړي تروریستان وګرځول شول نو اوس به ښه په خلاص مټ زندانونو ته استول کېږي ، وژل کېږي او تریتم کېږي به ؛ کله چې دا لړۍ ښه اوږده او داخوان غړي ښه تنګ شي نو دامنیتي ځواکونو دظلمونو په مقابل کې به دانصار بیت المقدس دډلې په څېر مسلح پاڅون پیل او دمصر حالت به دشام له حالت نه هم بدتر شي چې همدا داسرائیلو ،امریکا او نور لویدیځ هدف دی ؛ که څه هم امریکا داوسنۍ پرېکړې په ښکاره غندنه کړې او دالاخوان المسلمون پرضد یې دامنیتي ځواکونو دعملیاتو په اړه خپل تشویش ښکاره کړی خو چې له غولونکو څو ټکو پرته یې چې په عمل کې هیڅ ندي کړي نو ښکاري داسې چې ددې هرڅه تر شا دامریکا لاس دی او خامخا دمصر نه هم دوهم شام جوړول غواړي ؛ کاش چې داوسنۍ ادارې مشرانو دخپلو شخصي ګټولپاره هېواد ددومره سترې ورانۍ پرلور نه وای روان کړی.




د میدان وردګ ولایت چې د افغانستان له مرکزي ولایتونو څخه شمېرل کېږي په خپل ټول تاریخ کې یو علمي ولایت دی چې د علم په دواړو (دیني او عصري) ډګرونوکې یې ښه نامتو او مشهور علماء او استادان درلودلې دي.

د دغه ولایت وګړي که څه هم په عمومي توګه ډېر غریب او بې وزله دي ځکه چې کرهنیزې ځمکې او باغداري یې د نفوس په پرتله ډېرې کمې دي او له دې کبله چې سرحدي ولایت نه دی تجارتي آسانتیاوې او دخارجي راکړې ورکړې امکانات هم نلري او نور د معیشت اسباب یې هم ډېر محدود دي تل د شاقه او ستونزمنو کارونو له لارې خپلې د ژوند چارې پر مخ بیایي خو د دې ټولو مشکلاتو سره سره د علم، پوهې، تعلیم او تربیې مینه وال دي چې د خپل ژوند په ډېرو سختو شرائطو کې یې هم د تعلیم لاره نه ده پرېښې او زیار باسي تر څو خپل اولادونه تعلیمي ادارو ته سوق کړي پلارونه یې که څه هم د اقتصادي مشکلاتو سره لاس او ګریوان وي خو اولادونو ته یې د تعلیم او زده کړې فرصت برابر کړی وي تر څو په فارغ زړه خپله زده کړه وکړي.

له بلې خوا د ملک سیاسي تحولات، د پردیو یرغلونه،او امنیتي ستونزې او مشکلات هم هغه څه دي چې په عمومي توګه یې د ملک ټول مادي او معنوي بنسټونه و نړول او په ځانګړې ډول یې د تعلیم او تربیې بهیر یا په ټپه ودراوه او یا یې د منحرف کېدلو کوښښونه وشول خو د میدان وردګ په ولایت کې الحمدلله د ویښو او با احساسه علماء کرامو او مجاهدینو په مرسته او ابتکار ددې طوفان مخه تر ډېره حده ونیول شوه او دغوایي د کودتا او د روسانو د یرغل څخه وروسته یوازې دری کاله د تعلیم او د تعلّم بهیر

په ټپه ودرید ځکه چې د جهاد په ابتداءکې سخت مشکلات وو وروسته په ۱۳۷۱ه ش کې دغه بهیر په ډیرو ستونزمنو حالاتو کې په مخفي مرکزونو او دونو ترسیورو لاندې د درسونو ، کلیوالي مدرسو په بڼه شرو ع شو او د جهاد په کلونو کې په تدریجي ډول دغه بهیر مدرسو ، دینی لیلیه مدرسو ، دارالحفاظونو او ښونځیو (ابتدایه، متوسطه او لیسو ) په سطح پر مخ ولاړ چې په دې کې ددیني علماوو او مجاهدو مسلکی استادانو ونډه ډیره مهمه وه وروسته اګر چې تنظیمي جنګونه رامنځ ته شول خو تعلیمي بهیر خپل سیر ته دوام ورکړ او له دغو بدبختیو څخه یې ځان ګوښه وساته.

تر دې چې اسلامی امارت په ملک کی حاکم شو اسلامی امارت چی پخپله یو علمی حرکت وو نو یی دتعلیم او تعلم لپاره یوه دامن فضا رامنځ ته کړه ،شرائط یی برابر کړل، درسی مواد او امکانات یی د خپل وس په اندازه مهیا کړل ، په تعلیمی ادارو کې نظم او دسپلین رامنځ ته شو د ښوونی او روزنی وزارت په چوکاټ کې ټول دیني او عصري تعلیمات او پروګرامونه د اسلام د اصولو په رڼا کې منظم او توحید شول نو د میدان وردګ ولایت د تعلیم او تعلم مینه والو اومسئولینو له دغه فرصت څخه ډیره ګټه پورته کړه نوې مدرسې او دارالحفاظونه جوړ او منظم شول ، ښوونځي فعال شول، زرګونو شاګردانو ته د زده کړې شرائط برابر شول او ورځ په ورځ دغه لړۍ د ارتقاء په لور روانه وه.

تر دې چې یو بل طوفان د غرب له خوا په ملک باندې را والوت او زمونږ اسلامي ملک دا ځل د غربي یرغلګرو په لاس اشغال شو خو دا ځل د اسلام هغه شعوري دښمنان (یهود او نصاری ) په ملک مسلط شول چې زړه یې غوښتل تر څو زمونږ د ملک او مسلمان ملت د ښوونې او روزنې ټول مادي او معنوي بنسټونه ونړوي او دغه د ملت بچیان او نوي ځوانان په تکتیکي ډول د ډیرو مزخرفو او غولوونکو تبلیغاتو له لارې په عقیدوي او اخلاقي انحراف کې راګیر کړي دوی ظاهراً په تبلیغاتو کې د تعلیم مسئلې ته د خپلو پروګرامونو په سر کې ځای ورکړ چې ګویا موږ وران ښوونځي ودانوو ، تعلیم عاموو ...او نورې اوتې بوتې ) خو په حقیقت کې دوی څه وکړل مونږ به یې د میدان وردګ په ولایت کې هسې د نمونې په ډول د دوی د سوغات یادونه وکړو چې د دی ولایت مظلومو او علم پالونکو خلکو ته یی ورپه برخه کړ:

۱: په لس ګونه دینی لیلیه مدرسې او ورسره دارالحفاظونه چې د دیني علومو او د قرآنکریم د حفظ لړۍ پکې جاري وه او په زرګونو طالبانو او شاګردانو پکې زده کړه کوله دغه ټولې په لومړي قدم کې د سقوط سره مخامخ شوې ځکه چې دغه دیني مدرسې او د حفظ مرکزونه خو د دوی د یرغل لومړنی هدف وو نو یې سم د لاسه په ځینو مدرسو کې چې دوی وړیللې دمسلمانانو د ځپلو لپاره د جنګ قرار ګاوې جوړې کړې ،ځینې نورې یې چور او چپاول کړې.یو شمیر یې بمبارد کړې، ځینې یې په ماینونو والوزولې او نورې یې د فعالیت او زده کړې له جریان څخه بندې شوې دا یې لومړی خدمت وو چې د وردګو او میدان ولایت وګړی په دیني برخه کې ورڅخه برخمن شول.

۲: مسجدونه چې سربیره پر دې چې دیني مقدس او سپیڅلی د عبادت ځایونه دي زموږ د ملک د کلیوالي ماشومانو لپاره د علم او زده کړې لومړنی مدرسې او مرکزونه هم دي دا هم د دوی له وحشت څخه په امن پاتې نه شول بلکې هغه یې هم تر تهدید لاندې ونیول یو شمیر یې بمبارد او تخریب کړل د نمونې په ډول یې یو څو مثالونه په لاندې توګه ذکر کولای شو:

۱: د میدان د مرکز د شهیدانو د بازار جامع مسجد ۹ نه کاله کېږي چې امنیتي پوسته پکې جوړه ده په بامونو یې دفاعي سنگرونه جوړ شوي دي د عبادت څخه بند دی.

۲:د کوته عشر و مسجد څو ځله بمبارد او په توپونو و ویشتل شو چې زیاته برخه یې ورانه شوې ده.

۳: د تیبی دکلي مسجد له ۱۳۸۷ کال څخه را په دې خوا په اصطلاح د ملي اردو قرارگاه پکې جوړه ده.

۴: د ملا سعیدالله دکلي مسجد دروازه دامریکایانو له خوا په بمونو والوزول شوه ملا امام یې چې سپین ږیری عالم وو دوه میاشتې بندي شو چې بیا د خلکو په هلو ځلو راخلاص شو.

۵: نرخ ولسوالی د الوخیلو مسجد د امریکایانو له خوا بمبارد شو مکمل وران شو او شپږ کسه مسلمانان پکې شهیدان شول

۶: د شمکانو مسجد دامریکایانو له خوا بمبارد او مکمل وران شو

۷: د اعتبارخیلو مسجد هم د روژې مبارکې په میاشت کې دامریکایانو له خوا په توپونو وویشتل شو او ډیره برخه یې ورانه شوه

۸: د سیداباد ولسوالي د کاریز، بهادرخیلو، چهاردهی، او مرو مسجدونه هم تخریب شول.

دغه څو موارد د نمونې په ډو ل ذکر شول او په دی ډول مظالم او وحشتناکه کړنې ډیرې دی چې د ټولو ذکر کول زمونږ په دغه ځای کې مطلوب نه دي خو د میدان وردگ ولایت مسلمانانو ته په ښه ډول څرگندې دي.

۳:د عصري علومو ښوونځي چې دوی یې په تبلیغاتو او مطبوعاتو حتی پخپلو پالیسیو کې د خدمت او پرمختگ ټېر وهلی وو تر څو دنړۍ والو او د ولس د ځینو ځوانانو ذهنیتونه ځان ته راواړوی خو د میدان وردگ په ولایت کې یې په هغو هم صرفه ونکړه او خپله وحشي څیره یې په دغه ډگر کې هم ښکاره کړه موږ یې د نمونې په ډول ځینې موارد ذکر کوو:

۱: د چک د ولسوالۍ د عمرفاروق د لیسې شاگردان د قرآنکریم د توهین پر ضد د مظاهرې په مهال تر برید لاندې راغلل ۱۲ معصوم شاگردان ټپیان او یو په شهادت ورسید.

۲: د چک ولسوالۍ همدغه پورتنۍ لیسه دوه ځله وسوزول شوه غوښتل یې چې پړه یې پر طالبانو ور واچوي خو دغه عمل یې افشاء شو.

۳: ددغی ولسوالۍ د (شهدأ او پران) لیسه یې د ځان لپاره سپر گرځولې او دهغې په څنگ کې یې نظامي پوستې جوړې کړې چې زیاتره وخت تعطیل چې حتی د سقوط په حالت کې ده خلکو ډیرې چیغې وکړې خو څوک غوږ نه پرې گروي.

۴: د دغې ولسوالۍ د انبوخاک لیسه درې واره د دوی هدف وگرځیده او ډیره برخه یې تخریب شوه.

۵: د دغې ولسوالۍ د شیخ یاسین د متوسطې استاد عبدالباري د وحشی عسکرو له خوا په لاره کې ونیول شو او وروسته په ډیره بی رحمۍ سره شهید کړای شو.

۶: د دغې ولسوالۍ د سیاب د غازي گل احمد خان په لیسه چاپه ووهل شوه ملازم یې تهدید او زوی یې بندي کړ.

۷: د جغتو ولسوالۍ د کلانده لیسه تر برید لاندې راغله چې یو نفر پکې شهید او دوه زخمیان شوه.

۸: د دغې ولسوالۍ د غازي محمدجان خان لیسه بمبارد شوه.

۹: د دغې ولسوالۍ د موله ابتدائیه ښوونځی تر برید لاندې راغی.

۱۰: د دغې ولسوالۍ د ګوربت د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه لیسه و ویشتل شوه.

۱۱: د نرخ ولسوالي د شهاب الدین لیسه و سوزول شوه.

۱۲: د سیداباد ولسوالي د بادام د کلي ښوونځی بند کړل شو.

۱۳: د سیداباد ولسوالي د حکیم خیلود ښونځي شاګردان یې په هاوانونو شهیدان کړل.

او همدارنګه د ښونځیو یو شمیر استادان یې هم په شهادت ورسول لکه:

د چک ولسوالۍ د شیخ یاسین د ښونځي استاد عبدالباری او دمیدان دمرکز د رستم خیلو د لیسې د ښونځي استاد معلم ګلاب او...)

خوالحمدلله کله چی ددغو ددین ،علم ،او وطن ددښمنانو په مقابل کی سپیځلی جهاد شروع شو او ددغه ولایت زیاتره سیمی ددی وحشیانو له ناپاکه منګولو څخه پاکې شوي او داسلامی امارت په لاس فتحه شوی نو د اسلامی امارت د تعلیم او تربیې کمیسیون د دغو مفتوحه سیمو د مسلمانو وګړو لپاره د وخت او شرائطو سره سم د تعلیمي آسانتیاوو لپاره قدم پورته کړ او په دې اړه یې د خپلو تعلیمي پالیسیو په رڼا کې مناسب او ضروري اقدامات ترسره کړل

او د ټولو تعلیمي امورو د تعقیب او مراقبت لپاره د ولایت په سطح یو مسئول، ولایتي مرستیال او دهرې ولسوالۍ لپاره یو تعلیمي مدیر ټاکل شوی چې لاندې وظائف په منظم ډول تر سره کوي:

۱:عموماً چې د تعلیم او تعلم لپاره یوه د امن او اطمنان فضا رامنځ ته شوه نو ټولې تعلیمي ادارې یې تشویق کړې تر څو داسلامي اصولو په رڼا کې خپل تعلیمي پروګرامونه طرح او په کار واچوي.

۲: د لومړنیو زده کړو لپاره زمونږ د پخواني دود سره سم ابتدائیه کلیوالي مدرسې د کلیو د امامانو او علم دوسته مسلمانانو په مرسته فعالې شوي چې په کلیو کې ماشومانو ته د لیک او لوست څخه نیولي د فقه ضروري احکام، عقیدې، سیرت، ژبې او ریاضي په شمول لازم مضامین او کتابونه ویل کېږي تر څودغه ماشومان له لیک او لوست سربیره دخپل دین، عقیدې او اسلامي اخلاقو سره بلد او آشنا شي چې دا یو شرعي امر او مسئولیت هم دی چې اوس مهال په دې چوکاټ کې مونږ په دغه ولایت کې(۱۰۴) بابه کلیوالي مدرسې چې پکې (۴۸۵۲) شاګردان د (۱۵۲) استاذانو لخوا ورته تعلیم کېږي موجودې دي.

۳: د دیني متوسطو او لوړو زده کړو لپاره هم د پخواني دود سره سم مدرسین او با استعداده علماء او استادان په خپلو کلیو او امامتونو کې د منطقې طالبانو ته تدریس کوي چې د اعاشې او اباتې تکلیف او مصرف یې د ولس د مسلمانو خلکو په غاړه وي چې په مجموع کې (۵۲۵۷) شاګردان د (۱۹۲) استادانو لخوا په زدکړه بوخت دی او د دغې لړۍ د ښه کیفیت لپاره ځینې درسي اصول او مقررات وضع شوې دي تر څو د تعلیم دغه بهیر په ښه ډول او ښه کیفیت سره پر مخ ولاړشي لکه د هغوی د امتحانونو سلسله او ځینې نور تعلیمي او اخلاقي مقررات او هم د دغو دیني زده کړو د ښه کیفیت پخاطر د ټولو دیني مدارسو لپاره یو واحد تعلیمي نصاب چې د ملک د جیدو علماوو لخوا له ابتدایې او متوسطې څخه نیولې او بیا تر یولسمې درجې پورې ترتیب شوې دي چې په تدریجي ډول د عملي کېدلو په حال کې دی.

۴: د دغه دیني درسونو په څنګ کې یو شمیر د حفظ مرکزونه هم فعال شوې دي چې د ښو جیدو حفاظو او قاریانو لخوا ورته تعلیم کېږي او د حفظ په څنګ کې ورته کافي دیني معلومات هم ور ښودل کېږي چې په دې لړ کې هم تر دې مهاله د (۲۲۴۷) په شا وخوا کې حافظان په حفظ اخته دي.

۵:دعصري زده کړو لپاره دپخوا په پرتله اوس شرائط برابر دي ښوونځي د ابتدایه څخه نیولې تر لیسو او مسلکي زده کړو تر ښوونځیو پورې فعال دي او د منطقې د مسلمانو مجاهدو او مسلکي استادانو لخوا ورته تعلیم کیږي چې د سږ تعلیمي کال راپور دا دی چې په ټولو مفتوحه سیموکې (۲۱۷) ښوونځي چې پکې (۱۰۰۷۰) شاګردانو ته (د۲۸۲۸) استادانو لخوا تعلیم کېږي موجود دي. البته ددغو ښوونځیو د نظم او مراقبت لپاره یوه ځانګړې لائحه ترتیب شوې چې د هغو په رڼا کې یې نظارت کیږي چې ځینې مهمې نکتې یې دا دي:

۱:هر وخت یې د نصاب څارنه کېږي تر څو داسې مضامین چې عقیدوي او اخلاقي انحراف منځ ته راوړي په کې داخل نشي یا هم غیر مفید او عبث تفریحي مضامین چې د شاګردانو په اخلاقو منفي اثر غورزوی او له بلې خوا وخت ضائع کوی پکې تدریس نشي.

۲: دیني مضامین چې زمونږ داسلامي ټولنې بنیادي ضرورت دی کافي وخت ورته ورکول کېږي او د هغو د تدریس لپاره پوه او مستعد علماء ضروري بلل کېږي.

۳: د قرآنکریم په مضمون کې د قراءة او تجوید پوره اهتمام کېږي چې د مسلکي قاري لخوا ورته تعلیم کېږي.

۴: تنظیمي او ګوندي فعالیتونه بند او ممنوع دي هیڅوک نشي کولای له تعلیمي بهیر څخه د یو ګوند په ګټه استفاده وکړي.

۵: وخت په وخت تعلیمي سیمینارونه د مدیرانو او استادانو په کچه جوړیږي چې په هغو کې د تعلیمي نظام سربیره د عقیدې، اخلاقو او نورو ضروري موضوعاتو په اړه بحث کېږي .او نور دي ته ورته په ټولو درسي، اداري او هم د استادانو او شاګردانو او نور پرسونل په دیني او اخلاقي اړخونو پوره څارنه او مراقبت کېږي.

خلاصه دا چې: د میدان وردګ په ولایت کې اوس د تعلیم او تربیې بهیر دتعلیمي او جهادي مسئولینو، د منطقې د علماء کرامو، مخورو سپین ږیرو او عامه مسلمانانو په مرسته ښه روان دي په تعلیمي چوکاټ کې اوس یوازنی مشکل او ستونزه زمونږ د خارجي یرغلګرو او ګوډاګي رژیم چاپي او امنیتي مشکلات دي چې تعلیمي ادارو ته یې جوړوي چې د هغې له امله یوه تعلیمي اداره یا تخریب یا بنده او تعطیل شي الله جل جلاله دې دغه د دین ، وطن او علم دښمنان په خپل لایزال قدرت سره محو او نابود کړي او زمونږ دغه د جهاد او قربانیو هدف چې په دې ملک کې د یوه اسلامي نظام حاکمیت او د دغه ملک مسلمانان د علم په رڼا منور کول دې تر لاسه شي

(د دی او د جهاد د ټولو ارمانونو د پوره کیدلو په هیله)

(د ا.ا.ا د تعلیم او تربیې عالي کمیسیون)

يوولسمه برخه

# اسلامي هيوادو کې

## داسلاميت او مغربيت ترمنځ کشمکش!

### هندوستان کې دمشرقيت او مغربيت ...

ليکوال: داسلامي نړۍ مفکر عالم مولاناسيد ابوالحسن علي "ندوي" رح - ژباړه: ابوظهير

**ندوة العلماء تحريک:**

دندوة العلماء تحريک يا خوځښت، بنسټ په کال ۱۳۱۱هـق (۱۸۹۳ز) کې مولانا محمد علي مونګيري (رحمه الله) ايښى ،له هغه وروسته ددې تحريک رهبرې ، مولانا شبلي او دهغه څو تنو نوميالیو ملګرو وکړه ،دمولانا محمد علي مونګيري لخوا په جوړشوي دارلعلوم کې ددې توانمندې او صلاحيت و، چې داسلامي او غربي ثقافت او ديني علماوو اوجديدپالو ترمنځ په پل جوړيدو يو داسي متوازن فکر رامنځته کړي، چې دقديم اوجديد دواړو محاسنو جامع وي،ددې فکري مدرسې دمسولانو په تعبير : چې هغه فکر په اصولو اومقاصدو کې سخت دريځ ! په فروعو او وسايلو کې نرم مزاج وي.

دهغوئ په اند: د ديني تعليمي نصاب تغير او ترقي دزغملوده، چې دزمانې بدلونو اوغوښتنو ته په پام ، دخپل روح ، مقاصدو او اساسي علومو دساتنې سربيره يکې بدلون او ترقي راوستل شونې ده، دهغوئ په اند: تعليمي نصاب ديوجامد نصاب په ځاى بايد يو ژوندى اود جسم نامي په څېر دژوند او پراختيا له صلاحيتونو برخمن وي، په بل تعبير :دين يو تلپاتي حقيقت دى، چې په هغه کې هېڅ بدلون ته اړ تيا نشته ، خو علم غوړيدونکې ونې ته ورته دى ،چې ترې د اضافي څانګو ريبل او پريکون نور قوت ببښي ، دهغوئ په اند: اسلام ديوه نړيوال او تلپاتې ژوندي دين نوم دى، ولې چې دانسان ذهن د ار تقاء ، تنزل، او تغيراتو له بېلابېلو پړاونوسره مخ کيږي اوپه اوښتو حالاتو او تصوراتو يا افکارو کې لاربښودپه حيث دنده ترسره کول او دراپيدا شويو شکوکو اوشبهاتو رفع کول فطري عمل دى،ددې لپاره دهغه تعليم (چې داسلام لپاره استازي او شارحين تياروي) دايره پرلپسي غځيدلې اودخپلې وړ تيا اوژوندد ثبوت ور کولو اړ تيا ده ، دندوة العلماء بنسټ ايښودونکو دتعليمي نصاب د پراختيا غږ پورته کړ ، دا غږ د په هندوستان کې (چېرې چې په قديم نصاب کلک ټينګار کېږي) نااشنا اونوى غږ و ، تردې مهاله په نورو اسلامي هېوادو کې هم په نصاب کې داصلاحاتو دراوستوغلغله نه وه پورته ، جامعه ازهر هم ترداوخته په دا لور ګام نه و اخيستى او همدېته په دې دوه راتلونکو اقتباسونو کې نغوته شوې :

يـو اقتبـاس دنـدوة العلمـاء دمؤسـس مولانـا سـيد محمد علي مونگيري (رحمه الله) له يوه ليک اخستل شوى اودويم دمولانا شبلي نعماني دقلم دى:

اوس حالت بدل دى، هغه نيو کې چې وړاندې په فلسفه کې شوي ،اوس يې څوک نه پوښتي اونه هغه فرقې او اعتـراض کوونکې شـته،نن سبا دهغـو نيو کو ځوابونو يادولو ته اړ تيـا نشته، نن نوې نړۍ ده، نوى تخم، اونوې اوبه دي، دنوې فلسفې پر بنسټ داسلام مخالفانو نوې نوې اعتراضونه جوړ کړي، کوم چې پخوا نه و، هغو ته ځواب ويل دپخوانۍ فلسفې په مټ آسانه ندي، اگر که هر څوک هر څنگه دعوه هم وکړي! وجه يې داده چې يوه معترض ته قانع کونکى ځواب ور کول هغه وخت شونى دى، چې کله دمعترض داعتـراض منتها په ښه تو گه وپيژندلى شي اوبل داوجه هم را برسيره شي چې هغه دا اعتراض ولي کړى ؟( مکاتيب محمديه )

يونـاني علوم نه زمونږ ديني علوم دي او نه زمونږ ددين فهم اومعرفت په يوناني فلسفې پورې تړلى دى، امام غزالي (رحمه الله) پخپله زمانه کې دعلماوو په نصاب کې يونـاني فنون ددې لپاره ځـاى کړل، څـو ديونـاني علومـو لـه هغـواغيزو چې باطينيـانو شيندلي وو، علمـاء خبر کړ او پخپله زمانه کې دالحاد سره مقابله وکړي، خـو اوس نـه هغـه پخواني ملحـدان پـاتې دي اونـه هغـه يونـاني علوم شـته، نـه دهغـو مسـايلو در ښـتنوالي بـاور دعقل لـه مدعيانوسره پاتـه دى، لـه دې وجې دهغـو اثر پخپله له منځه لاړ دى، نن سبا اسلام ته دهغوئ له لوري هيڅ يـو گـواښ هـم متوجـه نـدى،نن دهغـو ځـاى نويـو علومو ته پاتې دى، نوى مسايل دي، نوي تحقيقات دي، اوس دېته اړ تيـا ده، چې زمونږ علمـاء لـه هغوشيانو څخه پـه خبريـدو دنويـو سـتونزو حـل ولټوي او نويـو شبهو ته تحقيقي ځواب وومومي( حيات شبلي ٢٠مخ)

دايو مبـارک گـام او لـه يوې نوې زواويې کتنـه وه، نـدوة العلمـاء نـه يـوائې دنصـاب داصلاحولو تحريـک و،هغه يو مستقل فکري ښوونځى هم و، هر هغه هڅواد تـه يې تقليد پکار و کوم چې دقديم اوجديد په معر که کې ښکېل او دداسي کشمکش ښکار و.

خـو دې تحريـک تـه دقـديم اوجديـد دواړو لوريـو (ددې پـراخ خليج لـه امله چې ددواړو تـرمنځ مـانع و) داسي مؤثر او دولولو ډک ملاتړ پـه نصيب نشو، دکوم چې حقـدار وو، ددې لوى سبب دهغـو اهلِ فکر او اهلِ دعـوت کمښـت وو، څـو کـچې ددغـو دواړو ثقـافتونو حـاملان او پـه سـمه تـو گـه يـې ددواړو دهضـم تـوان درلوداى، څو له هغو اجزاوو کوم چې په ښکاره سره متضـادوو، يـوه پـاکيزه، معتدلـه، ښايسـته، اومفيـده آميـزه تيـاره کـړي واى، څنـگ چـې دشـاتو مچـۍ دمختلفـو گلانـو اوونـو درس يوځـاى کولـو نـه شـات تياروي.

لنډه داچې دقوم يوه لويه برخه ددغو دواړو لوريو تـرمنځ ويشلې پاتـه وه، يوې ډلې په پخوانيـو تعليمي دودونو کې دويښته برابر انحراف هم تحريف اوبد عت گاڼه، بلې ډلې بيا له لويديځ نه هر نوي راغلي څېز ته دعظمت او تقديس په نظر کتل او هغه يې له هر عيب او نقصـان پـاک بالـه، تـر دې پورې چې دلويـديځوالو افکـار اوفکري تـگ لـورى هـم هغـوئ تـه دعصـمت او عظمـت هسـتې وځليـده او دبشـري تـاريخ داړ تقـاء وروستى الوت يې گاڼه، ددې دواړو لوريو ترمنځ دفکر اومعيـار لـه پلوه چې څومره تضـادو او څـه ډول دواړه د لويـو انتهـاوو پـه مور گـه ولاړ ول ؟لسـان العصـر شـاعر اروانښاد اکبر اله آبادي داسي انځور کړى:

اِدهر يه ضد هى که لمنډ چهو نهيى سکتى
اُدهر يه رټ هى که ساقي صُراحئ مى لا



ددې باوجود دندوة العلماء تخيل هغه معتدل او متوازن تخيل دی، کوم چې اوس هم ددې ور تيالري، چې ددينې نصاب ژوند ته يونوی قسط وبښې او په بر کت يې ملت دقديم او دجديد له کشمکش او جنګ بيرون کړي، دکوم له امله چې په ګڼو اسلامي هيوادو کې انتشار خور دی او ځينې هېوادونه دسيکولرزم په لور روان بنکاري.

دندوة العلماء تحريک مشر انو او دمدرسې ګڼو فضلاوو، داسلامي ثقافت په نشر و اشاعت، دنبوي سيرت په ليکلو او تدوين کې، داسلامي کار نامو او لار ښووونو په نوي علمي او ادبي اسلوب کې وړاندې کولو لړ کې ستر کر دار لاره، دعلامه شبلي نعماني، علمي او ادبي ليکنې، په خاصه تو ګه دنوموړي "سيرت النبي کتاب" الفاروق" الغزالي" مولانا جلال الدين رومي" او دهغه متکلمانه اومؤر خانه مضامينو اوليکنو دهندوستان په نوي نسل زيات اغيز کړی، هم دکمترۍ احساس په لمانځه وړلو کې يې کټور خدمتونه کړي، همدا شان دنوموړي نوميالي شاګرد اوځای ناستي مولانا سلمان ندوي په خدمتونو اود نوموړي په علمي کار نامو هيڅو ک ستر ګې نشي پټولی، د"سيرت النبي" ځلور ضخيم ټو کونه، دنبوي سيرت او علم کلام يو ارزښتمن کتابتون دی، هم دا راز دنوموړي د"مدراس ويناوو" په نوم کتاب دسيرت په موثرو او ګټورو کتابونو کې شمارل پکار دي، په همدې تو ګه دنوموړي علمي او محققانه کتابونو اسلامي کتابتون ښه مالا مال کړ، هغه او دهغه ځينو ملګرو دهېواد په علمي، ادبي، او ځينې وخت په سياسي هلو ځلو کې هم ونډه واخسته، څو هغه الزام ردشي، چې علماء دهېواد له عامه ژوند اونويو تحريکونو نه ځنډې ته اوسي، په نويو غوښتنو دپوهې او دهېواد په پرمختګ او ترقي کې دونډې اخستلو وړ تيا نلري، دار المصنفين او دهغه مياشتنۍ ورځپاڼه معارف (چې داوړدې مودې راهيسې دمولانا سيد سلمان ندوي تر مديريت لاندې له چاپه راوته) په اسلامي نړۍ کې يې خاص شهرت او درناوی لاره.

## د سر سيد احمدخان قيادت او دهغه اند:

ددويم قيادت بيرغ چې سر سيد احمد خان پور ته کړی و، هغه دغربي تهذيب په منلو او دهغه دمادي بنسټونو په تقليد دومره مين وه چې دهر دول عيوبو او نقايصو دڅاڼ، ترميم او تنقيد پر ته يې دغوره کولو دعوت کاو، هم يې دقرآن او حديث داسي توجيهات کول، چې دنولسمې پيړۍ دوروستيو ساينسي معلوماتواو دغربي تمدن له معيارونو سره يې سمون لاره او دلويديځوالو دذوق اومزاج سره هم آهنګ وو، هغه دټولو هغو غيبي حقايقو اوطبعې اسرارو نه انکار کاو، کومې ته چې تجربه او حواس لاس رسی نه لري اود جديدو علومو سره يې ادنی درجه برابر والی هم نه لاره.

سر سيد احمد خان دوروستۍ مغل امپراطورۍ زوال (کومه چې دمسلمانانو دسترې واکمنۍ يوه ادنی پاتې شوني وه) او د۱۸۵۷ز دازادۍ جنګ ناکامې پخپلو ستر ګو ليدلې وه، نوموړي دغه ستر هزيمت، دهندې و ګړو زړه شاواخون، دلوی شمېر په وړاندې د يو موټي بهرنيانو دبري ننداره کړي، مسلمانانو چې دهغه جنګ کوم دروند قيمت ور کړ، سر سيد په رڼو ستر ګو ليدلی و، هغه قوم چې پرون ددې هېواد (هند) واکمن و، دهغوئ زوال، دلويو کورنيو فقر، دانګريزانو شوکت او دبدبه (کومه چې دمسلمانانو دتير برم په کنډوالو ودانه وه) هم دا راز دهغوئ دحکومت او ساحرانه تهذيب مناظر يې په وړاندې تير وو، ددې څخه علاوه، دملازمت، رفاقت، دوستي او پيژند ګلوئ له لارې هم دانګريزانو سره ښه راشه درشه وه په ددې



وجه ور ته له ډیر نیږدې نه دانګریزې ژوند د مطالعې
فرصت په لاس ورغی ، دهغوئ له ذهانت، عملي څواک
او له تمدن یې دجنون تر بريد متاثر شو، داچې خپله هم
بنه ذهين ، ذكي الحس ،سريع الانفعال اودردمند و،
نوموړی تر متوسطې پورې ذده کړې لوستې وې، په
دیني علومو کې یې مطالعه زیاته اوپراخ نه وه، ډیر ژر
یې رایه بدلیده او بنه په بیبا کی کارولـه، هغـه
دانګریزانو څخه دومره متاثر ولکه یو مغلوب چې
دغالب نه ، یا کمزوری چې دځواکمن نه وي، ژریې
شخصاً دانګریزي تهذيب او دهغوئ دژوند طرز العمل
دځان کړ اونورو ته یې هم په ډیره لیوالتیا دانګر
یز تهذیب غوره کولو بلنه ور کوله، هغه فکر کاوچې
دانګریزانو سره هم رنګې، داوا کمن قوم تهذیب منل،
دهغوئ دژوندانه دود دستور خپلول او ور سره د تکلف
پر ته یوځایوالی به ترې مرعوبیت ، د کمتری او غلامی
احساس لري کړي،هغه داسې انګیرله چې دانګریز
دژوند انه اصولو په منلو به دوئ دواکمنو په نظر کې
عزتمن او قدر من بنکاره او له هغوئ سره به یوځای
مساوي درجه ومومي، دافکر او خیال دهغه په ځینو
مضامینو کې ډیر بنکاره راغلی لکه یوځای لیکي:

دهندوستان مسلمانان باید په پوره توګه
د "سویلزیشن" یعنې د تهذيب منلو لور ته وهڅول شي،
څو په هغه حقارت چې ور ته "سویلزډ" یعنې مهذب
قومونه ګوري، هغه به پای ومومي او دوئ ته به په نړی
کې دمعززو او مهذبو په ستر ګه وګوري( تهذيب
الاخلاق مضامين سرسيد ۲ټوک)

پخپله رساله (احكام طعام اهل كتاب) کې،چې
په ۱۸۶۸ز کې یې لیکلې ویلي :په خوراک څښاک
اوژوندانه کې دانګریزې دودونو غوره کولو ترغیب
ور کړئ، په عربي کې لیکي (ژباړه یې داده):

ای مسلمانانو! په دې عمل و کړئ، د تکبر او ځان
بنودنې په نیت نه، بلکې په دې نیت، چې مسلمانان
سرلوړي بنکاره شي، څو هغه ذلت او مسکنت چې و
رسره خلک روږدي شوي یو مخ نابود شي او هیڅ قوم
دوئ ته دحقارت په نظر ونه ګوري، الله تعالی ته زمونږ
دسینو حالت معلوم دی او هغه زمونږ دزړونو په اړه بنه
پریکړه کولی شي.

په کال ۱۸۶۹ز په اپریل کې سر سید احمد خان
لندن ته په سفر لاړ، په دې لوړیو شیبو کې لومړی
نومیالی مسلمان و، چې دبر طانوي جزایرو څخه یې
لیدنه و کړه، هغه مهال دسویز کنال په جوړولو کار روان
و، دهغه انجینر اوجوړونکي سره یې هم ولیدل چې
ورسره په الوتکه کې دسفر ملګری و، لندن کې
دسر سید تودهر کلی وشو، هلته ۱۷ میاشتې تم شو،
دیوه قدرمن، میلمه، دمحترم مسافر او نیږدي ملګري
په توګه دلندن دجګ پوړو چار واکو تر منځ یې ځای
وموند، په لویو لویو شاهي میلمستیاوو اوغونډو کې یې
ګډون و کړ ، په هره میلمستیا او غونډه کې غربي
تهذيب دلندن اشرافيون لـه خپلو ټولو تهذيبي او
کلتوري ځانګړ تیاوو سره یوځای حاضر ول، هغه ته یې
په دې علاوه د "سي ایس، ای" امتیازي خطاب او مډال
ور کړ ،دملکې، ولي عهد،وزیرانو، سره یې لیدنې
او کتنې و کړي، "منتهيم كلب" په څیر لویو علمي
ټولنولخوا ور ته ددرناوي غړیتوب ور کړ ، په دغه کال
چې څومره ساینسي پرمختیاوي راغلي وې، له هغو
ټولو نه یې لیده کاته و کړل، دتر قی پلانونو نه یې
مطالعه کړل چې له امله یې دبر تانيې په اقتصادي او
سیاسي نقشه کې دومره لوی بدلونونه رامنځته شوي
وو چې آن دحدودو په پر اختیا اوسیاسي برلاسي کې یې
ور ته برياوي په برخه کړي وي. نوربیا....

# هندوستان ، ولې په امريکا ټينګار کوي ؟

**عبيدتنوير**

په داسې حال کې چې امريکا په نظامي ميدان کې تاريخي شکست وليداو ۱۳ کلنې حربي يې يوپه بل پسې له خاوروسره خاوري شوي اوتر دې حده يې قوت اودبدبه پيکه اوبې خونده وګرځيده چې دخپلو ګوډاګيانو ستر ګې يې هم اوس نه پرې ډ کيږي اومذيد شتون ته يې زړه نه ښه کوي .

امريکا په دغسې سربداله حالت کې اوس ديو شمير هيوادونو په مرسته توندي هلې ځلې پيل کړي تر څو خپل دغه رسوابر خليک ته تغيرور کړي اوضمنا افغانانو ته داذهنيت وروڅخوي چې امريکايي شتون اوپوځي تړون ددوی په ګټه دي .

په دې ورستيو کې دهندوستان دبهرنيو چاروو زارت په ځومتعددواعلاميو کې داخبره تکرار کړه چې په افغانستان کې امريکايي شتون اوپوځي امنيتي تړون لاسليکول دافغانانو ، نړۍ اوسيمې په ګټه دي اوافغانان بائيد دغه موقع له لاسه ورنکړي ، دهندوستان په اند دتيرو ۱۳ کلونو په اوږدو کې دخارجيانو دشتون له وجې افغانانو په هر ډګر کې پر مختګ اوپيشرفت کړی اوکه خارجيان له افغانستان څخه ووځي اوتړون ورسره لاسليک نشي نوددې امکان قوي دی چې يوځل بيا به په افغانستان دطالبانو واکمني راشي !!

دهندوستان له دغو خبرو په ډاګه کيږي چې نوموړی هيوادد افغانستان په اړه څو مره مغرضانه اوشوم اهداف لري او کلک هوډ لري چې له يوه لوري افغانستان داوراوبار وتو په لمبو کې ګيروساتي اوله بلې خوا په سيمه کې ځان امريکا ته يونيږدي ګوډاګی هيوادثابت کړي .

دتيرو ۱۳ کلونو په اوږدو کې چې امريکا اوناټو په لکونو بې دفاع افغانان له تيغه تير او په ميلونو يې شکنجه کړل ، يوه ورځ هم هندوستان کومه خواشيني ښکاره نکړه چې امريکايانو په افغانستان کې ولسي وګړي وژلي اود هغوی بشري حقونه يې تر پښو لاندې کړي .

خو چې کله دامريکا درسوايي او نابودی ويره رامنځته شوه ،هندوستان په ټولو ډيپلوماتيکو اوبشري نورومونو پښې کيښودي ، مخامخ يې دافغانانو دښمنی ته ملاوتړله اوپه څرګنده يې دامريکا استعماري ګيډي ته دافغانانو دوراچولو هڅه وکړه .

شک نشته چې دافغانستان په مسايلو اوداخلي امورو کې ګاونډيو هيوادونو له څولسيزوراهيسې تر خپلې وسې پوري هر ډول لاسوهني ترسره کړي ،چې يويې هم دبښلو وړندي ؛خو هندوستان هم يوهغه هيواددی چې دافغانستان په مسايلو اوداخلي امورو کې هيڅکله دريم ګړی جهت ندی پاتې شوی اوتل يې دافغانستان ديني اوملي

ارزښتونودځپلوهڅه کړي اودافغانانودقاتلینو ننګه اومرسته کړي

ټــولې نــړۍ پـــه افغانســـتان دروســـانویرغل محکــــوم اودمظلوموافغانانوترڅنګ ودریـدل ، خوهندوستان هغـه هیـوادووچې دسرولښکروتجاوزیې نه داچې تائید کړ، بلکې تروړستی ورځې پورې یې په کابل کې دکمونیستي رژیم کلکه سیاسي اوپوځي حمایه وکړه .

دغه راز چې کله کمونیستي رژیم ونړیداومجاهدین کابل ته ننوتل هندوستان بیاهم هغه بهرنی هیوادوو چې دافغانستان په کورنیواموروکې یې ژورې لاسوهنې پیل کړي اوداخلي اخ ډوب په شدت اوپراخیدوکې یې مهم رول ولوباوه اودیوه جګړه ماراومفسد لوري یې بیدریغه مرسته اواکمال کاوه .

دغه ډول چې کله طالبانو دشراوفساداوداخلي جګړودله منځه وړلو اودمظلوموافغانانودنجات لپاره میدان ته راودانګل اودغلواودار ماروله یوه اجیربانډپرته یـې افغانـانوتودهرکلی وکړ،پـه دغـه وخـت کـې هـم هندوسـتان دلـوی ولـس دهیلـو اوارزوګـانوخلاف غـداری تـه لاس واچاو،دغلو، شوکماراواجرتي ډلو ترشاو دریداوپراخ مـالي اولوژستیکي امکانات یې ورته برابرول .

دپخوانی ټلوالې (مارشال فهیم) دخولې خبره ده چې هندوستان دطالبانوپـه ضـدددوی ټلـوالې تـه پـه نـوروجنګي تجهیزاتوسربیره پـه لکونومایینونه ورکړي ووچې دهغوپه توسط یې پـه ړومبیـوجنګي کرښو دطالبانومخه ډب کړې وه .

کله چې دامریکاپـه مشري اسلام دښمنه ایتلاف پـه افغانستان مستقیم یرغل راوړ ، هندوستان دامریکایانو په لارښوونه دافغانانوددیني اوفرهنګي اساساتودنړولو اودنوي نسل دانحراف لپاره په غیري مستقیم ډول یرغل پیل کړ .

هندوستان افغانستان تـه دځوپرسوده بسونودسپارلو اودپارلمـان دودانی دجوړولوپرته دتیرو۱۳ کلونوپه مهال بـل هـیڅ اقتصادي مرسته نده کړې، په دې برسیره یې افغانستان ته دبې کیفیته دارودرملوطوفان راوالوزاوه اوهم یې په هندوستان کې دافغانانودتداوای لپاره مهلک دامونه پکاروا چول اوهرناروغ چې هندوستان ته ورغلی په زرګونه ډالریې په بډه وهلي .

هندوستانیومدار یانوتل داتبلیغات پـه کـاراچول چـې دافغانستان ګاونـډي هیـواد پاکستان ځکـه پـه افغانستان کې لـه ځولسیزوراهیسي مداخله کوي او افغانان پـه جګړوکې مصروف ساتل غـواړي چې هغـوی دکونړ دسیندپه سرداوبودبنداولوی برښناکوټ جوړولووس پیـدانکړي، خوچې کلـه دهندوستان دراج نوبت راغی اودافغانستان پـه ډیرولیـري پرتوسیموکې یې دځان دګټې لپاره لویی پـروژې پـه ټیکـه واخیستلې ، دکونړ سیندته یې کومه ورځ په غلطی کې هم ورونه کتل .

معلومه شوه چې هندوستان تـل پـه افغانستان کې خپلې خـاص مجوسي اونـاولي عـزایم لرلي اوهیڅکلـه یـې نـدي غوښتي چې افغانـان اقتصـادي ښیرازی اوبهبـودولري اودهغـوی پـه خوښـه یواسلامي نظـام اوحاکمیت منځته راشي .

کـــــه همـــــداواوس لـــــه افغانســــتان ځخــــــه دنشریدونکوفحاشوتلویزونوپروګرامونه وکتل شي په سلوکې ۸۰ فیصده دهندوستان پـه بربنـډوفلمي صحنواومبتذلوډراماواوتصـویري اشتهاري اعلانونـوډک اوککـړ دي چـې ښـکاره هـدف تـرې دافغانـانواخلاقي سپیڅلتیانړول او دبی دینه کلچرعامه ول دي .

مونږپه داسې حال چې دهندوستان روان فرهنګي هجوم اویرغـل په کلکوټکوکې غندواودافغانانودملي اودیني اساساتوپه مقابل کې یې لویه دښمني بولو، داورستی غداري یې چې افغانـان دامنیتي تړون پـه توسط دامریکاطاغوتي لـومي تـه ورغورځـول غـواړي، پرتـه لـه کـوم ابهام ځخـه داحقیقـت پـه اثبـات رسـوي چـې هندوسـتان لـه امریکایانوزیـات دافغانانوتباه کولوته ملاتړلي ، ځکه له یوه لوري دافغانانواستقلال اوملي خپلواکي دامریکایانوپه شتون اوقضایي مصؤنیت لـه منځـه وړي ، لـه بـل لوري په افغانستان کې دخپل پرسوده اقتصادي بازار ګندونـه راواردول اودحیواني تهذیب د نورو جرړو تیتولو اوټینګولوته زمینه سازي کوي .




په افغانستان دامریکا دوحشیانه یرغل پرمهال دجوړ امریکایي رژیم دواک چارې له رباني نه کرزي ته انتقال شوې وې، یوه ورځپاڼه کې مې ستر ګې دهېواد دمشهورلیکوال او غزلبول شاعر استاد "فضل ولی ناګار" په هغه شعر خوږې شوې، کوم چې درانه استاد داغلي "مریم ناصرې" دیو شعر پر اقتفا کښلی و ،په تیره دې لاندې څو بیتونو یې په دې راته زیات خوند راکړ چې راته پکې مظلوم افغان ولس ته د مفهوم او پیغام ژور تخیل ښکاره شو او څما دحافظې پرلوح یې دخپل اثر کرښې نقش پرېښودې.

**ځان به غلام قام به دټول عمر بندي ساتي**
**څوک چې لاسونه ور کوي سر او تندي ساتي**

**شکونه هېڅ ندي پکار په دریابي خاموشۍ**
**سمندر تل کې توپانونه تل ژوندي ساتي**

**زه د ملالې دمقام مبارکې ور کووم**
**چې پښتنه زړه کې هوډونه میوندي ساتي**

**دلوپټو ښکړو خیر غواړه! بې ننګي زور شوې**
**زمونږ دکلي ګودرونه اوس پردي ساتي**

**دازادۍ په شیرینۍ شېندي دوینو بر سات**
**ناګار چې هر څه کوي مېنه فرهادي ساتي**

دوه ورځې دمخه پورتني بیتونه هغه مهال بیا را په زړه شول، چې رسنیو کې مې د کابل امریکا پلوي رژیم دولسمشر "حامد کرزي" له خولې ولوستل چې هغه له ژورنالستانو سره په خبرو کې دافغانستان اوسني وضعیت دډیورنډ ترون پرمهال له شرایطو سره پرتله کړ او اعتراف یې وکړ چې دبهرنیو ځواکونو په شتون او دجګړې او بمباریو په دوام کې دامریکا سره امنیتي تړون لاسلیکول دډیورنډ او ګندمک له تړونو سره هېڅ توپیر نه لري ! ! !

هغه (کرزي) داهم ویلي: دی کټ مټ له هغو فشارونو سره مخامخ دی له کومو سره چې په ۱۸۹۳ز کې دډیورنډ تړون دلاسلیکولو په وخت کې امیر عبد الرحمان خان مخامخ وو ، هغه وخت دافغانستان پاچا دبرتانویانو او دی اوس دامریکایانو ترفشارونو لاندې دی ! ! !

اوس پوښتنه داده چې اخر کوم شي کرزی اړکړی چې چې دامریکا له غلامۍ نشي وتلی ؟ یا واقعاً هغه دامریکایانو سیاسي ، تبلیغاتي او اقتصادي فشارونه حسوي هم؟ پښتانه وایي: څه چې کري هغه به ریبي ! ! یا داستاد په خبره:

ځان به غلام ! قام به دټول عمر بندي ساتي
څوک چې لاسونه ورکوي سر او تندي ساتي.

پرته له شک دکرزي په پښو کې دامریکا دغلامۍ کړۍ پرتې دي دهغوئ له خوښې او اذن پرته په خلاصو پښو نشي ګرځیدای، دیو ادنی امریکا یې سرې او ښځې داحترام لپاره هم سر ټیټې کوي، دهر که برماست ازما است په مصداق دخپل عمل خواړه؟ څکې؟؟

کرزیه ! نه پوهیدې چې امریکا ته دڅه لپاره توظیف او ګومارلې؟ته هغوئ ددې غیور ملت دښکېلولو لپاره راوستي او دارګ په ګدۍ یې کینولې، شابس په تا ؟تاهم په ډېر اخلاص دهغوئ لپاره کار وکړ، دخپلې خاورې



اوملت سره په جفا اوخیانت کې دشاشجاع ،کارمل او نجیب ریکارډ مات کړ. نن چې ستا دخولې ملت اورې چې دامریکایانو دسیاسي، اقتصادي اوتبلیغاتي فشارونو سره مخامخ یې دخوښۍ ځای دی.. ولې تر پرونه خوتا ویل امریکا یان زمونږ دوستان دي.. دایتلاف عسکر زمونږ دمرستې او دفاع پخاطر راغلي.. خودکومې دفاع؟ اوله چا نه ستا دفاع لپاره.. ؟مونږ ته !دلومړۍ ورځې نه دشاه شجاع ببرک اونجیب سکنی وروړ ګڼلې... ، هو ! رښتیا په عمل کې هم تا وښوده چې پردیو ته په غلامۍ او ګوډاګیتوب کې درسره هیڅوک سیالي نشي کولی..؟ اوسنۍ وضعیت چې ته !دډیورنډ ترون پرمهال له شرایطو سره پرتله کوي او وایې چې دامنیتې ترون لاسلیکول دډیورنډ اوګندمګ له ترونو سره توپیر نه لري ، دپوهې او ازاد ضمیر څښتنانو آن لا هغه مهال درته همدا ویلي چې کوم وخت تا !داروزګان په غرو کې دکفر دغلبې لپاره سنګرونه جوړول.. اودخپلو خلکو پرضد دي دامریکا یانو جنګي هلیکوپتروته کرودینات ورکول ! !دراډیو ګانو سره په خبرو اومرکو کې دي په لوړ ستونې نارې وهلې چې امریکایان مونږ سره خواخوږي لري.. زمونږ دنجات او ازادۍ لپاره راځي.. نه پوهیدي !چې له څه ډول ازادۍ لپاره؟اوله چا نه دازادۍ لپاره؟ تا بیا بیاله خلکو وغوښتل چې دامریکایانو سره مله شئ !ځانونه ازاد کړئ.

تا په پرون له دښه انکار کاو چې چا به وویل: امریکا دپلمو اوبهانو له لارې په سیمه اومنطقه کې ستراتیژکې موخې او اهداف لري؟نن ایله په دې خبرشوې چې امریکا له افغانستانه په اسانه نه وځي اوهغه په سیمه اومنطقه کې اوږدمهالې ګټې لري.. دخپلو ګټو لپاره ورته زه نه؛ افغانستان مهم دی.. او دهمدې لپاره افغانستان کې دایمې شتون غواړي.. کاشکې ! ته پرون هم په دې لهجه غږیدلی..وای ! !په کومه چې نن.. !

بې له شکه !تا افغان ولس ته جنګونه ، مرګونه ،ویرونه اوپیغورونه راوړل ، افغانان دي په امریکایې بریدونو او بمبارونو کې په وینو و سره ولمبول.. دخپل قدرت دبقا لپاره تا هره بې ننګې اوبدرنګې قبوله کړه.. ، دافغانانو دننګ هسکه شمله دي زمکې ته راټیټه کړه ... دافغا ن ماشومانو قاتلانو ته تا ! په سینو مډالونه وټومبل.. هم ستا په واکمنۍ کې پتمنې میرمنې بې پته اوبې ابرو شوې.. امریکایې درنده ګانو په کوچنیانو او بوډاګانو جنسي تیري و کړل.. په جنازو ، ودونو اومسجدونو بمونه پریوتل...په دې ټوله موده کې ستا ویده ضمیر ویښ نشو.. خپل غلام وجدان ملامت نکړې ...تعجب دی چې نن څنګه پوه شوې چې اوسنی وضعیت دډیورنډ اوګندمک ترونو پرمهال له شرایطو سره پرتله بولي .... هو !پوهیږې چې ستا باداره امریکاپخپل ټول کبر اوغرور دجهاد اومقاومت اتلانو دشکست اوزوال څنډې ته رسولي ... له افغانستانه دتیښتي او منډې حال کې دي ... په دې سره تا هم خپل انځور په اوبو کې لیدلی .... مونږ ګومان نه؛ بلکې دا باور لرو چې دپردې دننه تا له چون ن چرا پرته دامریکایانو سره هر څه په ورین تندي منلي .... امنیتي ترون دي هم لاسلیک کړي .... یواځې ددې پخاطر چې زمونږ سترګوته شګې را وشېندي.. او ساد لوحي خلک تیرباسي ... وایې له فشارونو شره مخامخ یم .... غواړې په دې ویناګانو ځان دتاریخ له محاکمې و ژغورې... خو باور وکړه ! ستا اوستا دملګرو اسلام ضد جنایتونه او خیانتونه هیځکله کوچنې ندي !چې ستا په دې لفاظیو هغه ټول جبیره شي.. ولې هر افغان تا پیژني ... ستا کرغیړن کردار ورته معلوم دی...دافکر ونکړې ! چې په دې ویناوو اوڅرګندونو به دخپل تاریخ پاڼه سپینه کړې ...هو !ستا دتاریخ هغه توره پاڼه....

# دمصر وروستۍ پېښې په ترکیه کې

# لاربوونه دي چا

# په لمسون...؟

حسن مومند

دنړیوالو بندیزونوسره سره چې ایران ته دسرو زرو اواسعارو دانتقال اودناقانونه ودانیو دجوړولوپه بدل کې په دولتي چارواکو درشوت اخستنې تورونه لرېدلي له هماغې ورځې دلوېدیځ رسنیو دطیب اردګان دادارې پرضد ډېر سخت تبلیغات پیل کړي اودامسئله بې عمداً ډېره ستره کړې چې له امله یې داوسنی ادارې پرضد پاڅونونه پیل اودرنګېدودخطرسره مخامخ ده.

کابو ۷ لسیزې وړاندې چې په ترکې کې عثماني خلافت رنګ او ترکیه دکمال اتاترک لاسونو ته ولوېدله نو کمال اتاترک پکې په اسلام دښمنی کې دومره داخلاص مظاهره وکړه چې شاید دهغه غربي بادارانو به ترې هم دومره زیات اخلاص نه غوښتلو ؛ عربي رسم الخط ختم او پرځای یې لاطیني رسم الخط رائج کړای شو داذان په شمول په ټولو اسلامي شعایرو بندیز ولګول شو ،دمسلمانو مېرمنو سر او مخ پټول قانوني جرم اعلان شو ،په سونو ستر او تاریخي جوماتونه په میوزیمونو بدل کړای شول او دترکې داسلامي تشخص دله منځه وړلو او پرتولنې دسیکولرزم یا لادینیت دمسلط کولو په موخه خبره تردې ورسېدله چې کمال اتاترک اعلان وکړ چې دترکې نه (نعوذباالله من ذلک)دخدای دخدایتوب یا خدایي واک جنازه ووتله.

دا طبعي وه چې دمسلمانانو لپاره دعثماني وروستي خلافت په وارثې ترکې کې دومره افراطي اسلام دښمني او بې دیني دزغم وړ نه وه او پروړاندې یې دسوچه مسلمانانو عکس العمل فطري واو چې له هماغې رومبی ورځې نه راڅرګند شوی هم و خو چې دولت ډېر زیات جابر و او ګڼ مسلمانان یې داسلام نه دنګې په جرم قتل کړي وو نو په لویه سطحه عکس العمل سر نه شو راپورته کولای ؛ دا چې داشغالګرو روسانو پرضد په افغانستان کې دجهاد دپیل کېدا او بریالیتوب له امله په مسلمان ملت کې ډېره ستره بېداري رامنځته او داسلام دنشأة ثانیه سفر ګړندی شو نو دعربانو سره په ګاوندې او داروپا په خولې کې پرتې ترکې کې دجهادي فکرپا داخوانیت په څېر دسلامي بنسټپالي سیاسي خوځښت درامنځته کېدو نه غرب په

سختې وېرې کې و نو ځکه یې دسیکولر فوځ په لاس دهر دیني خوځښت مخنیوی کاوه او په اسلامي رنګ او نوم جوړ شوی هر ګوند به یې لغوه اعلاناوه او ددې ګوند مشران به یې زندانونو ته لېږل خوداچې پرترکې مسلط سیکولرحاکمان سخت فاسد ، ولس ته نور دزغم وړ نه وواو په ترکې بدلون حتمي ښکاریدلو نو دعدل او پرمختګ په نوم دطیب اردګان او عبدالله ګل ګوند چې دریځ یې نرم و ؛ دلویدیځ دجمهوري اصولو په رڼا کې یې دانتخاباتو له لارې ځان واک ته رسول غوښتل ، دترکې سیکولر نظام ته یې خپله ژمنتیا ښکاره کوله ، دسیکولرستانو دفاسدې ادارې نه دسختو تنګو شویو ترکانو تده پرې ماتېدله او دسوچه اسلامي نظام دغوښتنې مخنیوي پرې هم کېدلو نو امریکا او نور لویدیځ یې وجود او په انتخاباتو کې پرلپسې درې کرته بریالیتوب او په واک کې راتلل وزغمل.

دواکمنۍ په څه دپاسه یوې لسیزې اوږدې مودې کې طیب اردګان دټولو مثبتو بدلونونو لپاره په ډېر احتیاط قدمونه پورته کړل ، داسې یو ګام یې هم پورته نکړ چې سیکولر نظام ته دنه ژمنتیا ددلیل په توګه وړاندې شي او نه یې په احساساتو ولاړ کوم داسې ستر اقدام وکړ چې سیکولر فوځ پرې زیات ناراضه او دا ردګان دادارې درنګېدلو سبب جوړ شوی وای .

هو! داسې اقدامات یې ضرور وکړل چې داسرائیلو، نولې لویدیځې کفري نړۍ او په ځانګړې توګه دامریکا دناراضایت سبب وګرځي او دطیب اردګان دادارې رنګولو لپاره دپلانونو جوړولو لامل شي مثلاً په میوزیمونو بدل شوي ټولو جوماتونو ته یې بېرته دجوماتونو حیثیت ورکړ ، دمنارو نه بیا دتوحید انګازې پورته شوې ،داسلام دشعایرو تعظیم پیل شو او هغه حجاب چې په ترکې کې قانوني جرم ګڼل کېدلو په هماغه حجاب کې دترکې مېرمنې ترپارلمان راغلې ؛ ترکیه ورو ورو اسلامي نړۍ ته راښږدې او دفلسطیني مسلمانانو سره دهمدردۍ او ورنه دحمایت له امله دکمال اتاترک دترکې دنږدې متحد غاصب اسرائیلي دولت نه دومره لرې شوه چې په نړیوالو کانفرانسونو کې ښاغلي اردګان داسرائیلي دولت مشر شمعون پیرس دظالم او قاتل په القابو یاد کړ ؛دباندنیو چارو وزارتونو ته یو دبل سفیران احضار کړل ؛ شریکې فوځي مانورئ به چې کېدلې لغوه شوې ؛ داسرائیلو له لورې دغزې دمحاصرې په شپو ورځو کې ترکیه یواځینی هغه هېواد و چې داسرائیلو دمحاصرې او بندیزونو پروا یې ونه ساتله او دبشري مرستو نه بار دفلوټیلا قافله یې غزې ته راواستوله چې وربانډې داسرائیلي کماندویانو له لورې دحملې له امله دترکې نه دښښې غوښتلو او دحملې قربانیانو ته دتاوان تورکولو پورې ددواړو هېوادونو ترمنځ دیپلوماتیکې اړیکې هم پرې شوې .

همدا راز چې تېر کال کله په برما کې مسلمانانو دوحشي بودایانو دسترو ظلمونو ښکار شول نو داسلامي نړۍ په دولتي مشرانو کې طیب اردګان یواځینی هغه مشر و چې دمظلومو مسلمانانو دد ردونو نه دځان خبرولو په موخه دخپلې مېرمنې سره یوځای ترېرما ولاړ او چې پرمسلمانانو شوي ستر ظلمونه یې په خپلو سترګو ولیدل نو دد رد نه ډکې ډېرې اوښکې یې توې کړې .

او کله چې سږ کال په مصر کې دامریکا ،نورلویدیځ او اسرائیلو په اشاره دمصري فوځ له لورې دمحمدمرسي اداره رنګه او بیا یې دمحمدمرسي په طرفدارۍ کې راوتي زرونه مسلمانان ووژل نو دلته هم طیب اردګان یواځینی مسلمان واکمن و چې دفوځ ددې ظلمونو غندنه یې وکړه او دمحمدمرسي دادارې رنګول یې دقانون نقص وګڼلو.

لنډه دا چې دا ردګان اوسنی بهرنی تګلاره امریکا ،نورلویدیځ او اسرائیلو ته دمنلو وړ نه وه چې له امله به یې خامخا ددې ادارې درنګولو لپاره پلانونه جوړول .

دطیب اردګان دا کمزورې اسلام پالنه او اسلامي نړۍ ته دنږدېکت دا یادې هڅې به هم امریکا ، نورلویدیځ او اسرائیل دطیب اردګان نه ښنونکی جرم ګڼي خو زما په اند ددې نه هم ستر جرم دطیب اردګان اقتصادي بغاوت و.

محترمو لوستوالو ته به معلوم وي چې نړیوال بانک او آی ایم ایف دواړه هغه نړیوالې مالیاتي اداري دي چې پرې دیهودو قبضه ده ؛ دا دواړه اداري دنړۍ زیاتره هېوادونو ته سودي قرضونه ورکوي چې له امله یې بیا همدا هېوادونه ددې ادارو داسې غلامۍ قبلولو ته مجبورېږي چې دمقروضو هېوادونو په قوانینو کې تغیر او تبدیل هم دیادو دواړو ادارو په غوښتنې راځي او دبرق ، غازو ، تېلو او داسې نورو سترو څیزونو نرخونه هم همدوئ ټاکي . همدا اقتصادي غلامي ده او دنړۍ یهود پدې لومو کې دټولې نړۍ راښکېلول غواړي خو طیب اردګان ددوئ په لومو کې راښکیل شوې ترکیه ددوئ دغلامۍ نه ازاده او دمسلسلو کامیابو هڅو په نتیجه کې یې په اقتصادي لحاظ دومره پرمختګ وکړ چې اوس ترکیه دنړیوال بانک یا آی.ایم.ایف یوه روپۍ هم نده مقروضه .

نو ځکه په ترکې کې هم دمصر په څېر دحالاتو رامنځته کولو او دطیب اردګان دادارې دړنګولو لپاره دکمالېزم نول پاتې شوني او دغربي این جي اوګانو کارکوونکي په کار اچول شوي او ښه په سپین سترګۍ یې په ترکې کې دامریکا اونور لویدیځ سفارتونه اداره کوي .

څو میاشتې وړاندې هم د اردګان ادارې پرضد دترکانو دراپورته کولو هڅې شوې وې کله چې دې ادارې په استنبول کې دیو پارک دورانولو او هورې داسلامي خلافت دفتح دیو ستر ځلي اوسودا ګړیز مرکزدجوړولو پرېکړه کړې وه خو هغه توطیه ځکه شنډه شوه چې ددولت ضد مظاهرو کې به یواځې دبډایو کورنیو یو څو زرو هلکانو او انجونو ګډون کاوه ؛ دترکې متوسطه طبقه چې دترکې قاطع اکثریت همدا طبقه تشکیلوي او همدوئ دطیب اردګان حامیان دي په هغه لاریونونو کې یې ګډون نه وکړی خو اوسنی توطیه ځکه خطرناکه ښکاري چې په دولت کې شامل دفتح الله ګولن ګوند هم اوس داردګان د مخالفینو په صف کې ودرېدلي دي .

اصل خبره داده چې طیب اردګان چې څرنګه دهېواد داقتصاد ښه کولو ته ډېره توجه کړیده نوترڅنګ یې دهېواد ښوونیز نظام دپیاوړتیالپاره هم ډېر مثبت ګامونه پورته کړیدي ؛ وړاندې به په یوصنف کې ۶۰ زدکوونکي ووخوطیب اردګان په تېرو ۱۱ کلونو کې دومره زیات ښوونځي جوړکړل چې اوس په یوصنف کې یواځې ۳۰ زدکونکي وي اودولت اراده لري چې داشمېره ۲۰ ته راکوزه کړي ترڅو د دولتي ښوونځو معیارلوړ اوخلک دشخصي مکتبونو په ځای دولتي مکتبونو ته مخه کړي ؛ دترکې دولت په نومبر کې دشخصي مکتبونو دبندولو پرېکړه کړی چې پدې کې دترکې دولس هراړخیزې ګټې نغښتې دي خودګولن اووده دډلې شخصي ګټوته تاوان رسېږي ځکه چې فتح الله ګولن د ,,خزمت موومنټ،، په نوم دډېرې سترې تعلیمي موسسې مشري کوي او ترکې او نورې اسلامي نړۍ کې په زرونو مکتبونه لري چې له دې لارې هرکال په سوونو ملیونه ډالر لاسته راوړي ، ګولن تل هڅه کوي چې ځان خلکو ته فلسفې او اسلامي علومو ماهر وښایې او نړۍ یې په همدې صفت وپېژني خو دا چې د ۱۹۹۰ راهیسې یې خپل وطن ترکیه او ټوله اسلامي نړۍ پرېښې ، په امریکا کې مېشت دی او داسرائیلو سره یې نېږدې روابط دي نو ځکه ورته دترکې او دحال نه یې خبروټولو مسلمانانو دشک په نظر کتل

چې دا شک اوس په یقین بدل شو کله چې پدې حساس وخت کې ګولن دطیب اردګان دادارې پرضد اواز پورته کړ .

او دا چې د ګولن موسسې نېږدې خپل ټول فارغین په پولیس او قضا کې مقرر کړي نو اوسنی لانجه کې همدې دواړو څانګو داردګان ادارې پرضد ددومره تشدد نه کار واخست او خپل بدنیت یې ترهغه حده ښکاره کړ چې قدم په قدم یې قانون هم تر پښو لاندې کړ مثلاً پولیس یې په کورونو چاپې وهې او مشکوک افراد دپولیسو مرکزونو ته راولې دې په ټولنې بداثر کړی و نوځکه دولت حکم وکړ چې دخپل افسر نه داجازې اخستلو پرته به پولیس دچا کور ته نه ورځي خو محکمې ددولت دا پرېکړه لغوه اعلان کړه او پولیسو ته یې دخپل افسر له اجازې پرته هم دهر مشکوک تن پرضد دعملیاتو او دپولیس مرکز ته دراوستلو اجازه ورکړه

همدا راز دطیب اردګان لور او ځوی سره له دې چې یوه وقف اداره چلوي هیڅ دولتي ماموریت نه لري او نه یې هم په اوسنی لانجه کې دککړتیا څه احتمال شته خو بیا هم داردګان ځوی بلال اردګان محکمې ته حاضر کړای شو او لکه څرنګه چې محاکمو دټولو نړیوالو قوانینو خلاف محاکمو ته دحاضرېدو نه لا دمخه دټولو ککړو تنانو دوسې مطبوعاتو ته ښکاره کړې همدا رنګه یې دبلال اردګان پسې دراجلبولو خط هم مطبوعاتو ته ورکړ ترڅو مطبوعاتو کې چاپ او په طیب اردګان دفشار راوستلو لپاره ترې کار واخستل شي ؛ دکورنیو چارو دوزیر معمرګولر دځوی بارس ګولر او داقتصاد دوزیر ظفرچالیان دځوی کان چالیان چې دمالي فساد په اوسنی لانجه کې تورن شول نو یادو دواړو وزیرانو استعفا ګانې ورکړې نوځکه دغرب په مطبوعاتو کې دترکې په اړه په چاپ شویو مقالو کې دامطالبه ډېره په شدومد سره کېږي چې دبلال اردګان دنوم درامخې ته کېدو نه پس باید طیب اردګان ژر ترژره مستعفي شي .

د ګولن اتحادې سره تړاولرونکو قاضیانو او پولیس افسرانو لا ۱۴ میاشتې دمخه دطیب اردګان دادارو دوزیرانو او دپارلمان دغړیو پرضد طوطئې پیل کړی وې او اوس چې دښاروالی انتخاباتو ته ایله دوه میاشتې پاتې دي نو پولیسو او محاکمو دا خبره راپورته کړه چې داردګان اداره په مالي فساد کې ککړه ده او ددې ادارې ۲۲ غړو په شریکه دې فساد ته لار برابره کړېده حال دا چې پدې ۲۲ تنانو کې اکثرلا ددې نه هم نه وو خبر چې څه رامنځته شویدي ؟

خو لومړی وزیر طیب اردګان د اوسنی توطئې په مقابل کې سخت غبرګون ښودلی دی ،هغه پدې لانجه کې دپولیسو کړنې ګڼده لوبه وګڼله او زیاته یې کړه چې ده دکورنو او بهرنو هغو کړیو شوم پلان دی چې دمارچ دراتلونکو انتخاباتو نه وړاندې زموږ دادارې بدنامول غواړي ؛ هغه زیاته کړه چې دهغو کړیو لاسونه به ورمات کړي چې دتفتیش او تحقیق په پلمه ددولت رنګول غواړي ؛ لومړي وزیر دا روپایې هېوادونو دسفیرانو ته هم اخطار ورکړ چې که دخپلو حدودو نه یې تجاوز وکړ (ددولت ضد دخلکو راپاڅولو کې لاس لرل پرې ثابت شول) نو دهېواد نه به یې وباسي .

سره له دې چې دنړکې د فوځ تاریخ داسلامپالو دځپلو او دملکې دولتونو پرضد دکودتاګانونه ډک دی خو داچې دطیب اردګان دواکمنی په تېرو ۱۱ کلونو کې دفوځ اصلي څېره ترکانو ته راڅرګنده او حیثیت ته یې ډېر تاوان رسېدلی دی نو په اوسنی موضوع کې یې بې طرفي خپله کړېده خو احتمال لاهم موجود دی چې فوځ دمخالیفینو تله درنده کړي .

نو اوس معلومه نده چې دغربي نړۍ دحمایت نه دبرخمنو مخالفینو شوم غزایم به پوره کېږي او که طیب اردګان به ورته په ماتې ورکولو بریالی کېږي .

# دسیاګرد غمیزه

## او له عاملینو یې انتقام

سید سعید

دسیاګرد دوروستۍ فاجعې وروستۍ مونډني ښیي چي په دغه غملړ لې پیښه کي ملکي خلګوته ترهغه څه ډېرځاني اومالي زیان اوښتی چي رسنیودپیښي په لومړۍ ورځ نشرکړ، په همدې ورځ په دغي واقعې کي دملکي قربانیانوشمېراته تنه ښوول کیده،خووروسته چي دسیمي له استوګنوسره خبري وشوې، په یاده شوې پیښه کي یې دشهیدوشووولسي وګړوتعداد۱۴ – ۱۷وښود، اوددې څخه علاوه یې ملکي خلګوته دپراخ مالي زیان اوښتوڅخه هم پرده پورته کړه .

ناټواودکابل حکومت دعوه وکړه چي په دغوعملیاتوکي یوازي دوه تنه ولسي افغانان وژل شوي اونوره مړګ ژوبله وسله والومخالفینو(مجاهدینو) ته اوښتې ده، خو مجاهدینورسنیوته په استول شوې خبرپاڼه کي دکابل ادارې هغه ادعاچي دولس تنه طالبان یې په یاده شوې جګړه کي وژلي په ټینګه ردکړې ده، مګرپه دغه جګړه کي یې دډېروولسي وګړو ترڅنګ دځېلوپنځوتنوملګرودشهادت ېخلی هم کړی دی .مجاهدین وایې چي په دغه جګړه کي یې څلورتنه امریکایې اودولس کسه داخلي عسکروژلي اوګڼ نوریې ټپیان کړي دي .

سیمي ته دکابل ادارې داستول شوي پلاوي مشراود ولسي جرګې غړي (عبدالستارخواصي) ازادي راډیوته وویل چي : بهرني پوځیان دبې ګناه افغانانوژوندته احترام نه لري ،دسیادګردولسوالۍ په وازغردره کي یې تېره شپه بمباري کړې ،۱۷تنه ولسي وګړي پکي شهیدان شوي اویوشمېر ټپیان شوي،

همدارنګه شپږاووه کورونه هم په دغه بمبارکي وران شوي دي .خواصي وویل چي :بهرنیوعسکروسهار کورونه تلاشي کړي ،اودروازې یې په بمونوالوزولي دي، همدارازنوموړي وویل چي : دنړیدلوکورونواو وژل شووکسانوانځورونه یې اخیستي دشنبې په ورځ به یې کرزي اودجرګې غړوته وښیې .

پژواک اژانس دیرغلګروله لوري دخپرې شوي اعلامیه له مخي ویلي چي همداعملیات یې دولایت اوولسوالۍ په مشوره اودافغان عسکروپه مشرۍ ترسره کړي، که څه هم کرزی اوپلاوي یې داسي ښیې چي ګواکي په دې سترظلم اودهشت کي ددوی عسکروګډون نه درلود.

داسلامي امارت ویندوی ذبیح الله مجاهد رسنیوته په استول شوې خبرپاڼه کي لیکي چي :دسیاګردپه عملیاتوکي یرغلګروځواکونودافغان ګوډاګیانوپه ملتیازموړپه لسهاووتنه ملکي وګړوته پراخه مړګ ژوبله اړولې، دزهرجنووسلوپه کارولوسره یې دخلګوباغونه اوفصلونه سوځیدلي ،۹ کورونه ویجاړ شوي ،همدارنګه په دغه یرغل کي عسکرودخلګو له کورونوڅخه قیمتي شیان غلاکړي اوډېرزیات مالي زیان یې ورته رسولی دی .

### دسیاګرددپیښي په اړه داسلامي امارت دریځ :

داسلامي امارت رهبري شوری په یوه اعلامیه کي په سیاګرد کي عام وژنه غندلې ،قربانیانوته یې د الله تعالی له دربارڅخه جنت

اووارثانوته يې لوی اجر او صبر غوښتی دی ، همدا راز اسلامي امارت ژمنه کړې چې دځپلو مظلومو هیوادوالوله قاتلینوبه انتقام اخلي .

طالبانو دبشري حقونوپه ټولنواوفعالانو ږغ کړی چې ددغې پیښې غندنه وکړي اوعاملین يې نړیوالو ته وريه ګوته کړي ترڅو په راتلونکي کې ددغه ډول ناوړه پیښومخه ونیول شي .

### دسیاګر د پیښه او د کرزي غبرګون :

دکرزي له فتره په خپره شوې خبرپاڼه کې دولسي وګړومړګ ژوبله غندل شوې اوداپې داوباماد هوکړه لیک څخه چې واردمخه يې له دوی سره لاسلیک کړی ښکاره سرغړونه بللې ده .

جنرال عتیق الله امرخېل دکرزي شکوې ته په اشاره له ازادي راډیوسره په مرکه کې وویل چې : «په افغانستان کې جنګ امریکایانو پیل کړی ،دوی نه دافغانانوپه خوښه راغلي اونه هم له افغانانوسره دځپلوکړنوپه اړه سلامشورې شریکوي، دوی دکرزي مخالفت اوموافقت بابیزه ګڼي ،دوی فقط خپلوموخوته رسیده غواړي په هر قیمت چې وي ».

زیاتره شنونکي په دې باوردي چې دامریکاپه وړاندې دکرزي وروستي اکټونه هسي غولونکي اوسمبولیک حرکات دي چې کومه پام وړنتیجه نه ده پرې مرتب .دخلګودهمدې دعوې لپاره دسیاګردبوړنونکې پیښه ښه دلیل کیداشي، ځکه له همدې پیښې ثابته شوه چې یرغلګر هرځای وغواړي چاپه وهلی شي،خلګ وژلی ،نیولی اوبندي کولای شي نوپه اصطلاح دامنیتي سنداونورومسایلوپرسر دکرزي اوامریکاچنې هسې یوه ډرامه ده نه واقعیت .

په هر صورت اوس له همدې پیښې دکرزي ناوسې اودامریکایانووحشت اوبدماشي نوره هم روښانه شوه .

### دخپلې ټکنالوژۍ په اړه دیرغلګروانتهایې مبالغه :

امریکایي ځواکونو غوښتل چې په سیاګرد کې پرمجاهدینوداسې حمله وکړي چې هغوی کاملا غافلګیره وساتي ،خوکوم وخت چې نیواکګراوګوډاګیان يې سیمي ته داخل شوي مجاهدینوواړپرې دمخه کړی ،ښه کاري بریدیې وراندي کړی کله چې په دغي لوبې چاپې کې امریکایي اوکورنیوعسکروته ډیرځاني زیان ورسید ،پلان یې ګډوډشو ،نوالوتکوېې داستوګني پرسیمه بمونه وغورځول چې له کبله يې ملکي خلګوته پراخ ځاني اومالي زیان واوښت .

دیرغلګر و معمول دی په کومه سیمه کې چې دتلفاتوسره مخ شي بیانوهغه دځاخبره وچ ولانده نه ګوري څه چې په مخه ورځي له منځه يې وړي ،همداډول پیښې خوراډیري رامنځته شوې چې پردوی باندي دحملې وروسته یې بسته –بسته کلي تراوراوبمونولاندي نیولي اوپه یومخیزه توګه يې له منځه وړي وي .

داټول په داسي حال کې چې دوی په تکرارسره ویلي چې دنوي ټکنالوژۍ په مټ له فضاڅخه پرمځکه څلوراینچه شی وینې اوان ښکالوېې اوري ،خوهمداټپره اونۍ يې په هلمند کې یوځلور کلن ماشوم په دې ګومان شهید کړچې ګواکي یوبریتور مخالف یې وسله پراوړه ددوی په وژلوپسي روان دی .

اشغالګروځواکونودخپلي ټکنالوژۍ اړوندلاپوشاپوسره سره په ډیرومواردوکي خو حتی حیوانان دانسانانوپه ګومان له منځه وړي دي ، دابیابیله خبره ده چې همدادمتمدني نړۍ پوځیان په خپلوهیوادونوکي دحیوانانوپه وژلوهم محاکمه کیږي ،خوپه افغانستان اوهغوسیموکي چې ددوی تراشغال لاندي دي دانسان وینه ددوی دحیوان تروینې هم سپکه اوبې ارزښته ده، دیرغلګروځواکونوپرله پسې تکراري جنایتونویوه لویه وجه همداده چې دلته نه دګوډاګي رژیم سره دومره واک اوځواک شته چې دځپلوخلګوهمدابښکاره وژونکي اودبشري حقونوناقضین دمحاکمې میزته راکش کړي اونه هم دمهذبې نړۍ په قوانینوکي داسي څه شته چې پوځیان يې له خپلوپولوبهر دستروجرایموپه ترسره کولوپړه وبلل شي .

### دسیاګر دفاجعه او له عاملینو یې غږ :

دسیاګردپیښې دوې ورځې وروسته داسلامي امارت مجاهدینوځپله ژمنه پوره کړ، دکابل په زړه وزیراکبرخان ۱۴نمرسړک باندي واقع دلبنانیانوهوټل باندي يې خوراحیرانونکی کامیاب بریدوکړ، داسي بریدچې په دغه هوټل کې میشت دیرغلګروهیوادونواړنددوه

درځنـه ډيپلوماتـان ،مشـاورين اواسـتخباراتي مـامورين يـې پـه خپلـه سزاورسول.

داسلامي امارت وياندذبيح الله مجاهدپرلبناني هوټل دبريدپـه اړه رسنيوته وويل چي :په دغه بريـد کي چي دسياګرددعام وژني دغچ پـه توګه ترسره شو ۲۹تنه جګپوړي بهرني اشخاص او۸تنه افغان ساتونکي وژل شوي، په بريدکي ډيرقوي منفجره موادکارول شوي او پرمهم هدف ترسره شوچي له امله يې يرغلګراودکابل رژيم چارواکي داسي سربداله شوي چي مطبوعاتي ځرګندوني يې يودبل ترديدونکي دي .

دکرزي رژيـم پـه دغـه حملـه کي د۲۱تنـودوژني پخلـی کړی،چي ۱۳يـې خارجيـان او۸ تنـه يـې افغانـان ښـيي،دوی همدابريـدپرملکي اواقتصادي بنسټونولوی ګوزاربللی دی . خو په واقعيت کي پـه بريـدکي هـدف ګرځـول شـوی ريسـټورانټ پـه کابـل کـي ديرغلګـري ټلـوالي دلوړپوړوماموينودشراب وکباب يـومهم استراحت ځای اوپناګاه وه، نـه يواقتصادي بنيادادپيرولور کوم ځای .

کـه دکابـل اداره دې بريدتـه پرټولګټوځـايونواوملکي خلګودحملې نوم ورکوي ،داسمه ده چي په دغه هوټل کي پـه ښنـه شـوي سـتي پـوځي جنرالان نه وو،خو واضح ده چي همـداوژل شـوي کسـان ديرغـل سـره پـه سياسـي، اسـتخباراتي، مـالي اوتبليغـاتي بخشـونوکي مسـتقيمابرخه وال وو،همدغوکسـانو بـه پـه دغـه هوټـل کـي دافغـان ولـس دايلولوپـاره سلامشورې او دښکېلاک دپايښت په موخه پلانونه سره شريکول .همدا رازدوی کــــه پـــــه ســــــياګردکي دمظلوموافغانانوپـــــه جونګړوبمباراودښځواوماشـــومانوپه ډلـــه ييـــزه وژنـــه کـــي دپيلوټانواوجنرالانوپـــه توګـــه دخيـــل نـــه وو،خودهمدغووحشـــي يرغلګروسره مرستي اومينې ترافغانستانه رارسولي وو، نوپـه ښنـه کـول يـې پـه کـوم منطـق پرملـي منافعوبريـدګڼل کيږي؟!پـه واقعيـت کي همدابريــــــدپرملي منافعونــــــه ، بلکــــــي پرملــــــي اضراروپوسترګوزاراودمظلوموهيوادوالوانتقام ؤ.

**پر دښمن دانتقامي بريداغيز:**

کابل کي پرلبناني هوټل دمجاهدينو انتقامي بريددومره مؤثر ؤچي دښمن يې دپوځي اوسياسي ځپني ترڅنګ په رواني لحاظ هم ډيروځاپه، يوه اونۍ وروسته لاهـم پـر همـدې بريـد لويـديځومطبوعاتوکي تبصـرې کيــدلې،امريکايي مشــهوري ورځپــاڼي نيويــارک ټايمزدهمـــدې بريــــدپردقيقوالي اوبريـــاليتوب اعتـــراف وکړاوهمـــد ايـــې دمجاهــــدينويوانتقامي ګوزاروبالـــــه . همـــدا رازافغانســــتان کـــي ديرغلګروځواکونويولوړرتبـه جنـرال ماريـک ميلـي دويـړيوکنفرانس لـه لاري په واشنګټن کي خبريالانوته وويل چي دجنوري په ۱۷مه کابل کي دطالبانوبريدډيرحيرانونکی ؤ، نومـوړي دې بريدتـه پـه اشاره خبـرداری ورکړچي ښايي پـه روان کـال کي طالبـان لاډيرخونړي بريدونـه تـر سـره کړي .

**پايله :**

دپروان ولايت په سياګردکي ديرغلګروځواکونواوداخلي ملګروپه چاپه اوبمبـارکي دولسي وګړو پـه تېـره دښځواو کوچنيانوشهادت افغـان ولـس ډيـردردمن اوغمجـن کړ ،خوپرلبنـاني هوټـل دمجاهدينوبريـدکي دامريکـايي ،برتـانوي او... يرغلګروهيوادونودسياسـي اواسـتخباراتي ماموينووژني يې زخمي زړونه پټی کړل .بل داچي دې انتقامي بريديو وار بياددښمن تبليغاتي کمپاين چي مجاهدين پرديوهيوادونوپـوري تـړي مسخره کړ ،ځکه دې بريدثابته کړه، چي مجاهدين ترهرچا وړاندي اوپه ښه ډول دمظلوم ولس غوښتنواوهيلوته لومړيتوب ورکوي، دافغانستان اوافغان ولس اصلي غاورين همدااسلامي امارت اتـل مجاهـدين دي چي په خوښۍ يې خوښ اوپه درديې دردمن دي.همـدا رازدمجاهدينوهمـدې انتقامي بريد دښـمن تـه پـه ډاګـه کـړه چي افغـان ولـس دومـره بې ځوکـه اوکمزوری هم نه دی چي هرڅوک يې پرسرټکوي، داولس دزمريانوپـه شان داسي غښتلي تورزنان ، غازيان اوفدايان لري،چي دخپلي خاوري په ساتنه ،دمقدساتوپه پالنه اودخپلوخلګودوژنکوپه وژنه ډير ښه پـوهيږي .

هو!

هرچا چي په بد نظر زموږ خواته کتلي دي

موږ په ډير تلوار دهغوسترګي رايستلي دي



# در کانفرانس اخیر مطبوعاتی...

مطلب مهمی را با مدیا در میان گذاشت. وی گفت: «... چند سال قبل در یک صحبت رویاروئی با قوماندان ( کانگرسمن !) امریکائی، شکایت کردم که نظامیان امریکایی، مردم بیگناه را توقیف و در زندان بگرام نگاه داشته اند. مخاطب بمن گفت: ما به کار خود ادامه میدهیم. گفتم مانع کار شما خواهم شد. گفت شما یک فرد استید. « ...

چندین استنباط از روایت بالا بدست می آید:

- از یک طرف بیچارگی و درماندگی رئیس جمهور (!) در دفاع از جان و مال مردم و امنیت و سلامت کشور در برابر تحکم و دیکتاد قوای مهاجم. از طرف دیگر علاقمندی وی تحت همه شرایط در حفظ کرسی ایکه خیر آن چندان به مردم نرسیده و اگر وضع به همین شیوه دوام کند نخواهد رسید.

- اعتراف به این واقعیت که مهاجمین خارجی در کشور همه کاره و افغان ها اعم از رئیس جمهور، مارشال و مجاهد هیچ کاره اند.

- دوازده سال کار استخباراتی و تبلیغاتی در شکل دهی ذهنیت عامه به خصوص فکر و ذکر جوانان فاقدِ بستر ثابت عقیدوی، ابتکار عمل سوق و اداره حوادث را در دست خارجیان متمرکز ساخته است. کشور های مهاجم با استفاده ازین امتیاز توانسته اند ابتدآ ولسمشر را از مردم تجرید کنند و در موقف ضعیف ) بدون پشتوانه ولسی و قومی ) قرار بدهند. بعداً خود را حامی و مدافع منحصر به فرد وی در برابر قیام مخالفین مسلح جا بزنند.

ازان جائیکه طلب حمایت و درخواست دفاع از خارجی مستلزم اطاعت بی چون و چرا از وی است، رئیس جمهور در انزوا و تنهائی مطلق نه ظرفیت اتخاذ تصمیم مستقل را دارد و نه هم افزار اجرای چنین تصمیمی را. پروسه تدویر لویه جرگه اخیر مظهر ناتوانی ولسمشر در کنترول اوضاع است :

حکومت دست به تشکیل لویه جرگه زد تا ازان برای توجیه موقف خود در موضوع درخواست امریکا (مطالبه امتیاز پایگاه) استفاده کند. اما به دلیل به انحراف کشیدن فیصله لویه جرگه بالوسیله شبکه های استخبارات خارجی، خواست حکومت بر آورده نشد. این مثال خوبی است در بیان اینکه حلقات خارجی و گماشتگان افغانی شان میتوانند از طریق اعمال نفوذ در ساختار های وابسته به قاعده هرم قدرت (مردم) بر رآس هرم (اورگان تصمیم گیرنده در حکومت ( اثر بگذارند و خواست خود را عملی کنند. از یک جامعه روان مرده، فرسوده، نیازمند و معروض به ویرانگری بیگانه طی سه دهه، توقع بیشتر ازین را نمیتوان داشـــــــــــت.

تجربه لویه جرگه خطری را که از ناحیه مداخله خارجی در انتخابات آینده متصور است بدرستی تمثیل میکند: انتخابات را فقط در حد افزار یک کودتای سیاسی با عملکرد نظامی (حضور جنگی قوت های خارجی) در دست قوت های خارجی علیه مشروعیت دیموکراتیک میتوان ارزیابی کرد. موره های این کودتا قبلآ در اورگان های امنیتی و ادارات انتخاباتی چیده شده

است .درین حال برنده انتخابات یقیناً یک کودتاچی است که به زور قوای مهاجم برای استمرار جنگ به قدرت میرسد. این حالت خاطره صدور کارمل را سوار بالای تانک های روسی در ذهن تداعی میکند...

انتخابات در شرایطی که موضوع متنازع فیه اعطای « امتیاز پایگاه نظامی « به امریکا شامل رقابت انتخاباتی شده است انگیزه میشود تا امریکا و متحدین با استفاده از تمام امکانات پروسه را به استقامت خواست خود شکل بدهند : یعنی با دست آویز انتخابات معامله گری را روی صحنه بالا بکشند که از یک طرف در اعطای امتیاز پایگاه به امریکا تعلل نکند و از جانب دیگر اشتیاق همکاری را با ائتلاف نظامی بین المللی در ادامه جنگ با مقاومت مسلح داشته باشد. آخر پایگاه را باید از حملات مخالفین در امان نگاه داشت .

ولسمشر شاغلی کرزی در یک اقدام مسئولانه موضوع اعطای پایگاه را با نتیجه مذاکره صلح با مقاومت مسلح گره زده است .این اقدام قابل توجه اما ناوقت ، در صورت تدویر انتخابات در پایان دو ماه آینده جزء تاریخ زندگی سیاسی ولسمشر میشود و هیچ اثر عملی در استقرار صلح به جا نمیگذارد .

**مطالعه تاریخ سیاسی مناسبات کشور های پیشرفته صنعتی با دنیای سوم دو واقعیت را روبروی ما میگذارد:**

ـ یکی اینکه در جریان جنگ سرد کشور های کوچک و ضعیف از نظر پوتانسیل دفاعی ، استقلال نسبی خود را در کشمکش رقابت های ابر قدرت ها حفظ کرده بودند. این پروسه که از بطن آن جنبش عدم انسلاک زاده شد ، با ختم جنگ سرد و پایان دنیای چند قطبی دیگر مطرح نیست.

ـ دیگر اینکه به شهادت تاریخ سیاسی هیچ اشغالگری با التماس ، دعا ، درود و چوف و پوف از موضع خود عقب نه نشسته است ، مگر با فشار جنگ دفاعی .
فعلاً « برای تآمین صلح » یگانه مرجع اعمال فشار جنگ بالای مهاجمین ، استفاده « مشروط » از مخالفین مسلح است که طی دوازده سال در دایره یک بازی کثیف استخباراتی به قربانی گرفته شده اند. البته درین بازی ، مزید بر محاسبه غلط و سوء تفاهم ، توطئه حلقات داخلی و خارجی آتش افروز و مشتاق زمینه سازی تفرقه قومی ، نقش خود را داشته است .

مقاومت دیگر دارای ساختار فکری یک دهه قبل نیست : مقاومت ، ناسیونالیزم و مذهب را با تکتیک مبارزه دشوار با شبه استعمار قرن ۲۱ که با شعار گلوبالیزیشن ، دیموکراسی و جنگ ضد تروریزم وارد قراء و قصبات بیدفاع افغان ها شده است بکار گرفته راهی است.

مقاومت مسلح تروریست نیست اما الزاماً در جنگ تحمیلی از حربه تکتیکی تروریزم غیر دولتی بر ضد تروریزم دولتی استفاده میکند. افراطی مذهبی نیست . از افراطیت به مثابه تکتیک تقویت پوتانسیل جنگی بر ضد اشغال بهره برداری مینماید .

مقاومت استمرار نسل بانسل میراث جهاد و مبارزات آزادیخواهانه برحق مردم افغانستان علیه انگریزان ، روسان و فعلاً قوای اشغالگر ائتلاف بین المللی است .
امریکا در تلاش است با سوء استفاده از نیاز افغان ها به کمک اقتصادی و امنیتی یک معاهده غیر عادلانه را از « طریق جنگ » بالای افغانستان تحمیل کند. اجیران بیشماری را که اکثر آبه اقوام اقلیت وابستگی دارند و طی ده سال از ترس آنچه هیولای طالب نامیده شده است ( در واقع پشتون ها ) ، به امریکا و متحدین پناه برده اند ، استخدام کرده است. این » قراردادی » ها که در پارلمان ، ادارات حکومتی و اورگانهای امنیتی نفوذ کرده اند ، حکومت موازی را میسازند که سوق و اداره آن در دست قوای مهاجم است. « قراردادی ها » مدیا و مطبوعات داخلی را کاملاً تحت کنترول دارند و در انجا بنام « کارشناس » وارد معرکه میشوند...

درین جا قصد ، نفی نفس اتحاد ستراتژیک در شرایط عادی با کشور های دیگر در دنیائیکه نیازمندی های متقابل



الزاماً جوامع انسانی را در پیوند با همدیگر قرار میدهد، نیست. اعتراض به سو استفاده از حالت زار افغانستان برای تحمیل یک معاهده شبه استعماری به قصد ادامه جنگ با استفاده از فشار جنـــــگ اســـــت .

پس چه باید کرد؟

مشروط ساختن امضای معاهده به تآمین صلح یک اقدام واقعبینانه و منصفانه است. ایکاش چنین تصمیمی چندین سال قبل اتخاذ میشد تا مرگ به سراغ هزاران افغان نمیامد. با اینهم در دو ماهی که به «خطر» انتخابات (در واقع خطر جنگ با افزاری ساختن انتخابات) باقی مانده است برای ایجاد فشار بیشتر به مهاجمین خارجی به قصد تآمین صلح اقدامات عاجل ذیل را میتوان رویدست گرفت:

ـ تدارک زمینه تدویر یک کانفرانس بین الافغانی و بین الحکومتی تحت سرپرستی موسسه ملل متحد.

درین کانفرانس علاوه بر دولت های شامل ائتلاف نظامی بین المللی، نمایندگان مقاومت مسلح، جامعه مدنی و سائر فعالین سیاسی به استثنای متهمین جنایات جنگی و خایینین ملی اشتراک خواهند کرد. در صدر اجندا تشکیل یک حکومت موقتی «وحدت ملی» قرار خواهد داشت. سپس در کلیه جبهات جنگ اوربند اعلام خواهد گردید.

برای اجتناب از اعطای رسمیت و مشروعیت به مداخله کشور های همسایه آنها از اشتراک در کانفرانس کنار زده خواهند شد.

توافق صلح در محور تشکیل حکومت موقتی وحدت ملی با اقدامات بعدی ذیل اکمال میشود:

ـ اعلام حالت اضطرار و الغای انتخابات آینده.

ـ تقرر هواخواهان صلح در رآس ارگان های امنیتی به خصوص امنیت ملی.

ـ به مثابه تجویز وقایوی: به سمت قوماندان اعلی قوای مسلح، صدور فرمان عدم همکاری قوای مسلح افغانی با مهاجمین خارجی در عملیات نظامی علیه مخالفین مسلح و مردم افغانستان از جانب ولسمشر.

ـ صدور فرمان پیوستن بخش وفادار قوای مسلح به حکومت، به مقاومت مسلح در جبهات جنگ از طرف رئیس جمهور به صفت قوماندان عالی قوای مسلح. اعلام عفو تسلیم شدگان توسط مخالفین مسلح.

ـ غیر فعال سازی آن بخش قوای مسلح که به حکومت غیر وفادار باقی مانده است.

ـ رهائی کلیه زندانیان سیاسی.

ـ پرداخت جبران خساره به بازماندگان قربانیان ملکی جنگ.

ـ استعفای جمعی حکومت فعلی با انتقال کلیه صلاحیت های حکومت دوران جنگ به حکومت موقتی دوران صلح.

این اقدامات مطمئناً هیچیک در حد توان ولسمشر نیست. رئیس جمهوری که نتوانست والی پروان را با الزام مسئولیت جنایت جنگی ولسوالی سیاگرد لااقل عزل کند، ظرفیت عملی ساختن پیشنهادات متذکره را نخواهد داشت. در همه مواردی که مستقیماً به سرنوشت جنگ و صلح ارتباط میگیرد، عجالتاً قوای اشغالگر حرف آخر را میزنند. در جنگی که ضد تروریزم نامیده شده و دران اطفال شیرخوار را بنام القاعده کشته راهی هستند به ولسمشر صرفاً نقش سرگلوله توپ (بلا تشبیه) اعطا شده است.

روستار ترکی

